# کندهار

د کندهار اطلاعاتو او فرهنگ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

۱۳۹۷ کال لومړۍ گڼه
(حمل - ثور)



د کندهار اطلاعاتو او فرهنگ ریاست نوې ودانۍ، چې په ۱۳۸۹ لمریز کال کې جوړه سوه.








# کندهار



علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس
**محمدولي زلمی**

مسئول مدير
**محمدنبي سلطاني**

کتنپلاوي
**ډاکټر عبدالرازق پالوال**
**استاد محمد معصوم هوتک**
**پوهنمل شېرشاه رشاد**
**استاد حيات الله رفيقي**
**محمد يار يار**
**محمد ابراهيم سپېڅلی**

**دريمه دوره**
**د ۱۳۹۷ش کال لومړۍ ګڼه ( وری - غويی)**
**پرله پسې ۸۶ يمه ګڼه**

**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيان رسوونکي ليکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکلي ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کيږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هيواد او له هيواده دباندې د مجلې بيې**

هيواد: ۳۰ - افغانۍ

پاکستان: ۱۰۰ - کلداري

**کلنۍ ګډون**

هيواد: ۱۸۰ - افغانۍ

پاکستان: ۶۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۱۰۰ - امريکايي ډالره

پته
**علامه حبيبي واټ**
**اطلاعاتو او فرهنګ رياست**
**د کندهار مجلې دفتر**
**ټليفون: ۰۷۹۳۰۴۰۱۴۰**

ايميل ادرس: kandaharmagazine@gmail.com

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې



## راپورونه

دداداري يادابنت:

# زموږ تېر خپرنيز كال

د كندهار مجلې تېر خپرنيز كال زموږ لپاره خورا د پام وړ وو، له دې سره - سره چې د ځينو پېژندل سوو (هغه چي ځان د لوی كندهار او په خاصه توگه ځانونه د كندهار د ادب، ژبي، فرهنگ او... ميراث خواره بولي) له همكارۍ پرته وتوانېدو، چي ځيني څېړني، تحقيقات، ژباړې، ژوند ليكونه، خاطرې او شعرونه، چي نوي، لوستونكو ته په زړه پوري او ارزښت ولري وړاندي كړو.

د نوو ځوانانو ليكني، ژباړې، ادبي ټوټې، شعرونه او څه نا څه څېړني او تحقيقات، (چي ځيني ژبني او گرامري تېروتي به ئې ښايي درلودې) په دې خاطر وړاندي كړو، چي پر نوو ځوانانو مو په راتلونكي كي پانگونه كړې وي.

كه څه هم كله - كله به مجله د گوتو په شمېر ورځو وځنډېده، خو بيا هم وتوانېدو چي د كال له پيله تر پايه مجله پر خپل وخت (په هارډ او سافټ) كي تر لوستونكو ورسوو.

د ځوانو ليكوالو هڅول، په مجله كي ئې ليكني خپرول، تېروتني ئې اصلاح كول، خپلو نيمگړتياوو ته متوجه كېدل، همداسي په افغانستان او له هيواده دباندي د څېړونكو، محقيقانو، شاعرانو او ليكوالانو سره اړيكي نيول، د مشرانو مشورې، ډاډ، لاسنيوی او كار ته تشويقول هغه څه وو، چي موږ ته ئې نورجرئت راكړ او راتلونكي ته هيله مندتيا.

دا خبره خورا روښانه او څرگنده ده، چي زموږ ټولي هڅې، كوښښونه او هلي ځلي د خپلي ژبي د ژوندی ساتلو، د تاريخ د تيارو اړخونو د روښانه كولو، د پښتني كلتور د غني كولو، د ټولنيزو ارزښتونو د خوندي كولو، د ښوونيز نظام د پياوړي كولو او د هيواد د ابادولو لپاره دي، په دې يون كي ستاسو ملتيا راسره خورا اړينه او ضروري ده، تاسو درانه ليكوالان، محقيقان، ژبپوهان، ادبپوهان او شاعران كه په دې لار كي راسره ملگري سئ، خپلي مشورې، تحقيقات، څېړني او ليكني راسره شريک كړئ، نو د دغه ملي او كلتوري مسئوليت د اداكولو تر څنگ به مو زموږ معنوي مرسته هم كړې وي.

استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# د کندهار اطلاعات او کلتور ریاست لنډه تاریخچه



په کندهار ولایت کې د مطبوعاتو رسمي پیل په اماني دوره کې د طلوع افغان اخبار د تاسیس له ورځې څخه را نښلول سوی دئ او کله چې څوک غواړي د ددغه ولایت د مطبوعاتو پر سابقه وړغېږي، نوله طلوع افغان اخبار څخه به خبره را پیلوي. څرنګه چې د طلوع افغان اخبار د هغه وخت چلوونکي او همکاران د هماغه وخت د مطبوعاتو لومړي بنسټ ایښوونکي دي، نو زه غواړم چې ددغه اخبار په باب یوڅه زیات وړغېږم.

زما خبري ټولي د اخبار د هماغو لومړیو ګڼو دمشاهدې او مطالعې پر بنسټ ولاړي دي. دا ګڼې د کابل په عامه کتابخانه کې خوندي وې او ما نږدې څلوېښت کاله پخوا کتلي وې. اوس ئې حال نه لرم چې پرتې به وي که څرنګه؟

طلوع افغان اخبار د شاه امان الله غازي د روښانه دورې د دریم کال په دوبي کې یعني د ۱۳۰۰ هـ ش کال د سرطان پر پنځلسمه د چارشنبې په ورځ چې د۱۳۳۹هـق کال د شوال له دیرشمي او د ۱۹۲۱ع کال د جولای له شپږمې سره برابره وه، پخپلو نشراتو پیل وکړ. مدیر او سر محرر ئې مولوي صالح محمد هوتک او د دفتر ادرس ئې "محل اداره قندهار" ښوولی وو. د لومړۍ ګڼې په پای کې ئې "بقلم و اهتمام عبدالعزیز اختتام یافت" عبارت لیکل سوی دئ او له دې څخه ښکاري چې د مرحوم بابه جان عبدالعزیز خان الکوزي همکاري د اخبار له لومړۍ ګڼې څخه ملګرې وه. د اخبار خپروني له اول سره په فارسي او پښتو دواړو ژبو وې خو پښتو برخه ئې د فارسي برخې په پرتله ډېره لږ وه. په لومړۍ ګڼه کې د "پښتو" تر سرلیک لاندې یو مضمون راغلی دئ چې د لیکنې له سیاق څخه څوک ویلای سي چې غالباً به د مولوي صالح محمد خان هوتک په قلم لیکل سوی وو. په دې لیکنه کې د اخبار پر فایدو بیان سوی او په پای کې ئې دا بیت راغلی دئ:

که په درست عـــــمر یوه دوعا لرم په خدای قبوله
ده پادشاه په شان کـې ښایي هم مشروعه هم مقبوله

د اخبار "حوادث خارجیه" د اروابناد منشي محمدعثمان خان بارکزي لخوا ژباړل کېدل. د کابل د

عامه کتابخانې په کلکسیون کې دوهمه ګڼه نسته. په دریمه ګڼه کې د "سید محسن قندهاري" په قلم یوه مقاله خپره سوې او د ادبیاتو په ستون کې ئې د ده یو شعر (مخمس) راغلی دئ. دا ګڼه هم "بقلم و رقم عبدالعزیز الکوزایی اختتام یافت" عبارت لري. په اوومه ګڼه کې ئې د اخبار دفتر په "محل ادراه ــ سراچه ارګ قندهار" ښوول سوی دئ. د ارګ سراچه د کندهار ښاروالۍ د اوسني تعمیر شمالي خواته (قبلې لور ته یو څه مایله) پرته وه. یووخت "مدیریت خارجه" پکښې وو او بل وخت څو بستریز روغتون هم وو. داخبار د خطاط نوم په لومړیو دیارلسو ګڼو کې نسته او په څورلسمه ګڼه کې ئې د خطاط په توګه د عبدالوهاب نوم لیکل سوی دئ. خو ددریمي ګڼې له "قلم و رقم..." له کلماتو څخه څوک ویلای سي چې دخطاطۍ کار ئې په لومړیو ګڼو کې باباجان عبدالعزیزخان سرته رسولی وو. میرزا عبدالوهاب خان د محمد سرور زوی وو او د اخبار د کاپي نویسانو په ډله کې تر ډېره وخته شامل وو. دی د خپل وخت په ښو خطاطانو کې شمېرل کېدی. له پنځلسمي ګڼې وروسته د خطاط نوم نه لیکي. د اخبار کاغذ ئې نازک خوشکي ډوله وو او کله به ئې ژړ، کله شیرچایي او کله پسته یي رنګ درلود. اخبار تر اووه دېرشمي ګڼې پوري د چارشنبې په ورځ راووت خو له اته دېرشمي ګڼې څخه هره شنبې خپرېدی. د طلوع افغان اخبار تر شپږ دېرشمي ګڼې پوري د مولوي صالح محمد هوتک په سرمحررۍ خپورسو. په شپږ دېرشمه ګڼه (۲۴ حوت ۱۳۰۰ش) کې مولوي مرحوم د "اعتذار از طرف مدیر و سرمحرر طلوع افغان" تر سرلیک لاندې یوه خبرتیا خپره کړې او په هغې کې ئې په معارف کې د زیاتو مصروفیتو له اسیته د اخبار له مدیریت څخه ئې خپل عذر اعلان کړی دئ. له اووه دېرشمي ګڼې څخه نو د اخبار د سرمحرر په توګه د "عبدالعزیزخان قندهاری الکوزایی" نوم وینو. طلوع افغان د لومړي کال د خپرو سوو ګڼو شمېر پنځوسو ته رسېدلی دئ.

ددریم کال په نهه دېرشمه ګڼه کې د "ارشاد اعلیحضرت غازی جوان" په نامه یو مضمون سته چې په هغه کې ئې "په پښتو نشر کې د طلوع افغان" د اعلیحضرت غازي لارښوونه راغلې ده. دا خبر د ۱۳۰۳ش کال د جوزا پر ۲۴ مه خپور سوی دئ. له دغې ګڼې وروسته د اخبار اووه کالمه فارسي او دوه کالمه پښتو دي، خو په راتلونکو ګڼو کې دا موازنه بیرته ګډه وډه سوې او مراعات سوې نه ده. له دې څخه په څرګنده توګه ښکاري چې اعلیحضرت غازي امان الله شاه په تدریجي توګه داخبار د پښتو کېدلو اراده درلوده او دې ارادې ته تر دغې نېټې اته کاله وروسته علامه عبدالحي حبیبي تحقق ورکړ او اخبار ئې ټول په پښتو کړ. خو دغه وخت اعلیحضرت غازي امان الله شاه د هیواد د کورنیو او بهرنیو دښمنانو د فتنو له اسیته له خپل محبوب وطن څخه په فرسخونو لیري د پردېسۍ شپې تېرولې.

باباجان عبدالعزیز خان د اخبار مدیریت د شپږم کال تر وروستۍ ګڼې پوري وکړ او مرستیال ئې خواجه محمد وو. له دغې ګڼې وروسته بابه جان "د علاج له پاره" کابل ته ولاړ. د اخبار رسمي مشري د بابه جان پر غاړه وه خو کارونه ئې د مرستیال له خوا پر مخ بېول کېدل. داووم کال لومړۍ ګڼه د مدیر د معاون خواجه محمد په نامه خپره سوه. اخبار په دغه وخت کې د هفتې دوه واره (د شنبې او چارشنبې په ورځو کې)

خپرونـې درلـودې. لـه اخبـار سـره د خواجـه محمـد همکاري د شپږم کال څخه د شعرونو په خپرولو سره پیل سوې وه. د خواجه محمد شعرونه زیاتره د خپل وخت د ناوړو رواجو کړلو ته وقف سوي ول. په شعر کې ئې کارسوې لغوي پانګه د راتلونکو ژبنیو څېړنو له پاره ښه مواد لري. خواجه محمد د اخبار د چلولو کار د اووم کال تر ۶۴مې ګنې پوري پوري ورساوه. په دغه وخت کـې پـه کابـل کـې لویـه جرګـه راغوښـتل سـوې وه او خواجـه محمـدمعاون د کنـدهار د اسـتازو پـه ډلـه کـې ټاکـل سـوی او کابـل تـه روان سـو. د ده د تګ خبـر پـه څلورشپېتمه ګڼه کې خپور سوی دئ. له ۶۵مې ګڼې (شـنبه ۹ سـنبله ۱۳۰۷ش) څخـه د سرپرسـت کـار د سید حسین پر غاړه وو. دسید حسین پـه سرپرسـتۍ دوولس ګڼې خپرې سوې. د اووم کال له ۷۷ مـې ګڼـې څخه بیر ته د بابا جان عبدالعزیز خان نوم وینو. سید حسین د اخبار او نورو نشراتو په کاپي نویسـۍ کـې هـم ډېري خولې تویې کړي دي. د دغه کال لـه نهـه نـویمې ګڼـې څخـه پـه هیـواد کـې د اړودوړ د پیلامـې ځینـې بدمرغه خبرونه خپر ېږي او په دغه لړ کې لـه شـاه امـان الله غازي سره د کندهاریانو د کلک ملاتړ پـه بـاب د اتـم کـال پـه دوهمـه ګڼـه کـې " اعلامیـه مجلـس اعیـان قنـدهار " او د همـدې کـال پـه اتمـه ګڼـه کـې د " فتـوای علمـــای عظـــام " پـــه نامـــه مطالـــب خپـــروي. تـردې وروسـتـه پـه هیـواد کـې حـالات ورځ پـه ورځ کړکېچن کېږي او د غـازي امـان الله شـاه تـر استعفا او وتلو وروسته پر وطن یوه توره تیاره خپرېږي. په دغه تیاره کې د طلوع افغان تاریخي نوم په " مؤید الاسلام " اوړي او بابه جان د زندان مېلمه کېږي. پـه هیـواد کـې ددغـه تـور نـاورین تـر ختمېـدو وروسـتـه د طلـوع افغـان اخبار روڼا بیرته د اروابناد باباجان پـه لاس خپرېږي او

تر ۱۳۰۹ ش کال پوري د همده په مدیریت او د ځوان عبـدالحي حبیبـي پـه معاونیـت دوام کـوي. لـه طلـوع افغان سره د علامه حبیبـي همکـاري د شپږم کـال لـه دریمي ګڼې (۲۸ عقرب ۱۳۰۵ش) څخه پیـل کېږي. دغه وخت علامه مرحوم د ښوونکي وظیفـه درلـوده او په همدې ګڼه کې ئې کندهار ته د شاه امان الله غازي د راتګ په مناسبت یو شعر خپور کړی دئ:

"قندهار نه دئ دا ستا د عشق مکتب دئ"

پـه ۱۳۰۹ ش کـال بابـا جـان پـه ملـي شـورا کـې د کنـدهار د وکیـل پـه توګـه ټاکـل کېـږي او د اخبـار د سرپرستۍ کار د مدیر د مرستیال عبدالحي حبیبي ( وروسـته علامـه پوهانـد عبـدالحی حبیبي) پـر غـاړه لوېږي. په ۱۳۱۰ ش کال عبـدالحي حبیبي د اخبار د رسمي مدیر په توګه کار پیل او لکه وړاندي چې مو وویـل، پـه ۱۳۱۱ش کـال ټـول اخبـار پـه پښـتو کـوي. طلوع افغـان پـه هیـواد کـې د لومړني پښتو اخبـار ویـاړ ګټـي.

علامه حبیبي پـه ۱۳۱۹ ش کـال پـه کابـل کـې د نـوي تاسیس سـوي پښـتو ټـولنې مشـر وټاکـل سـو او د طلـوع افغـان اخبـار مـدیریت محمـد یوسـف ایـازي تـه وسـپارل سـو. د محمـد یوسـف ایـازي پـه وخـت کـې د اخبار د منتظم د نده د اروابناد میرزا عبـدالودود هوتـک پر غاړه وه. میرزا عبدالودود هوتک تر دې د ندې پخوا د اخبـار د کـاپي نویسـانو پـه ډلـه کـې شـامل وو. میـرزا عبدالودود د مرګ تر وخته (۱۳۲۶ش) د طلوع افغـان د ۱۳۲۶ ش کـال د ۲۷مـې ګڼـې پـه شـهادت دا خبـار چلولو ټولې چاري، بې له دې چې نوم دې یاد سي، په ډېر جدیت او مینه پر مخ وهلې.

تر محمد يوسف ايازي وروسته د کندهار د مطبوعاتو مشري د دې لاندي ذواتو په لاس کي ول:

- قيام الدين خادم
- محمدشاه ارشاد
- غلام محی الدين ايوبي
- محمد ولي زلمی
- اغامحمد کرزی
- محمد ابراهيم عطايي
- عبدالصمد ويسا
- شيرآغا
- مولاجان
- محمد ظاهر شفق
- عبدالکريم طالب
- وکيل احمد متوکل
- اميرخان متقي
- عبدالحنان همت
- عبدالحی مطمئن
- عبدالعلی اريمل
- عبدالمجيد بابی
- عبدالقديم پتيال
- دواخان مينه پال
- حضرت ولي هوتک
- فضل الباري بريالی

د کندهار د اطلاعاتو و کلتور اداره (پخوا د مطبوعاتو اداره) دهغو کندهاري ليکوالو، شاعرانو او منورينو د روزني او پالني مرکز وو، چي د دولت په چوکاټ کي ئې کمه (کومه) رسمي دنده نه درلوده. دغي ودانۍ ته به تر رسمي وخت وروسته د ښار زياتره ليکوال، شاعران او ځوانان راتلل او علمي بانډارونه به ئې کول. زما د زلميتوب په وخت کي د زياترو کندهاريو ځوانانو د علمي، ادبي تشويق او ترغيب مرکز همدا مطبوعات ول. په تېره بيا د اروانښاد اغامحمد خان کرزي او اروانښاد عبدالصمد ويسا هغه هڅوني د زياتي ستايني وړ دي، چي د ځوانانو د ادبي و فرهنگي هڅو په وده کي ئې په سربښندني سره سرته رسولې. دوی د دولتي اختناق او سرکاري ايداد پروا نه ساتله او ځوانان ئې د آزاد اندېشۍ په روحيه ادبي او فرهنگي کارو ته هڅول.

زما د اطلاعات او کلتور له اوسني سرپرست ريس ګران فضل الباري بريالي څخه هيله داده، چي ددغو ټولو ذواتو د معرفۍ له پاره دننه په رياست کي يو کتاب کښېږدي او د هر پخواني او راتلونکي مطبوعاتي مشر ژوند ليک او کارنامې دي پکښې وليکل سي.

په کندهار کي دي د پوهي او ادب پلوشې تل خپرې وي.

ډاکټر نثار احمد صمد واصفي

# د افغانستان لومړنی مسجد

بسم الله الرحمن الرحيم -افغانستان ته د اسلام سپېڅلی دين لومړی د دوهم خليفه حضرت عمر رضی الله عنه د امارت پر مهال رارسېدلی دئ، خو د افغانستان بېلا بېلي سيمي په بېلا بېلو مودو کي د اسلام په نور منوري سوي دي.

مثلا: د احنف بن قيس رضی الله عنه په قومانده د افغانستان لويديځي سيمي؛ لکه: هرات، غور، بادغيس او فارياب فتح سوې. هغه همدا راز بلخ، تخار، جوزجان، تالقان او د شمال نوري برخي هم فتح کړې.

د عبدالله بن بديل خزاعي رضی الله عنه په قومانده ګرمسير او هلمند فتح سول.

د عبدالله بن عامر رضی الله عنه په قومانده د سيستان ډېره برخه؛ لکه: زرنج او فراه او بيا وروسته رخد (نننی کندهار) فتح سو او د ارغنداب په وادي کي ئې د يو سخت جنګ پر مهال د رتبيل غټ پوځ مات کړ.

د تکړه صحابي عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه په قومانده زابل، کابل او ختيځ فتح سول.

په هر صورت، هغوی ټوله اصحابان وه، خو حسن بصري (رحمه الله) لومړنی تابعي او اسلامي عالم دئ، چي افغانستان ته راغلی دئ. دا هغه وخت وو، چي په سر تر پايه ټول افغانستان کي حتی يو مسلمان هم نه وو، بلکي افغانان ګرده بت پرستان يا اور لمانځونکي وه.

حسن بصري رحمه الله د نن څخه ۱۴۰۰ کاله مخکي زموږ نيکه ګانو ته اسلام وربښووی، هغه دلته لومړنی بلندوی، لومړنی مدرس او لومړنی محدث دی چي تشريف ئې راوړی دئ.

هغه په افغانستان کی درې کاله تير کړي دي او په دې موده کي ئې د اسلام د تبليغ لپاره نه ستړي کېدونکي خدمتونه کړي دي. حسن بصري رحمه الله په زرنج، بُست، کندهار، زابل، غزني، کابل او نورو

ښارونو کې د خورا زیاتو افغانانو زړونه د اسلام د سپېڅلي دین په نور منور کړي دي.

خلیفه حضرت عثمان رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ډېر تکړه ملګری عبدالرحمن بن سمُره رضی الله عنه داته زره کسیز پوځ سره افغانستان ته راولیږی. هغه سیستان، بُست او رخد (کندهار) تر زابل پوري ونیول او بغاوت ئې ارام کړ.

وروسته معاویه په ۴۳ هجري (یا ۶۶۳ میلادي) کې عبدالرحمن بن سمُره رضی الله عنه د یو پیاوړي پوځ سره یو ځل بیا افغانستان ته راولیږی (افغانستان بعد از اسلام: ۱۶۰ مخ). ابن سمُره په یو کال کې د دې ټولي سیمي ناآرامي آرامي کړې. بیائې بُست، کش (کشکی نخود)، داور (زمین داور)، رخج (اراخوزیا، دارغنداو ناوه یا کندهار) ونیول. وروسته زابلستان او کابلستان ته پسی ورغی او په ۴۴ هجري کې ئې دا وطنونه هم ټوله ونیول. (دافغانستان لنډ تاریخ: ۲۰۸ مخ)

عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه درې کاله همدلته پاته سو. ده د ځان سره یوه ډله اسلامي علماء هم راوستل چې مشهور ئې حسن بصري وو. ده د تبلیغ له لاري اسلامي احکام په خلکو کي ټینګ کړل. (دافغانستان تاریخ: ۶۱ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۱۵۷، ۱۵۸ او ۱۶۳ مخونه)

اسلامي فقهاوو په خراسان او سیستان کي پر ټولو دیني چارو، تعلیم، اسلامي اوامرو او د مسجدونو پر جوړولو کنټرول درلود او قضا هم دوی ته سپارل سوې وه. مثلاً کله چې عبدالرحمن بن سمُره رضی الله عنه او حسن بصري رحمه الله دلته راغلل نو د سیستان «آدینه مسجد» هغوی دواړو په ګډه جوړ کړ، داسي چې مسجد عبدالرحمن او محراب ئې حسن بصري جوړ کړ. دا په افغانستان کي لومړنی مسجد دی چې زموږ نیکه ګانو عبادت پکښې پیل کړ. (تاریخ سیستان ۸۹ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۵۳۸ مخ)

هغوی دواړو د دې مسجد تر څنګ یوه لویه دیني مدرسه هم جوړه کړه چې نوو مسلمان سوو افغانانو خپل اولادونه پکښې شامل کړل. حسن بصري رحمه الله څه باندي درې کاله د سیستان په آدینه مسجد کي کښېناست او د سیستان خلکو پر هغه باندي علم وایه. (هماغه دوه مأخذونه)

تر آدینه مسجد لږ موده وروسته دوهم مسجد د بلخ «نه ګنبد مسجد» دئ، چې په ۵۱ هجري کې د قیس بن السلمي او بیا د ربیع بن زیاد له خوا د بودایانو د «نوبهار» معبد تر ورانولو وروسته د هغه پر ځای ودان سو. (تاریخ کامل، لومړی جلد: ۴۹۸ مخ)

د عباسیانو د خلافت پر مهال د بلخ اوسېدونکو (د نهمي میلادي پېړی په نیمایي کې) د نوبهار د وران کړای سوي معبد پر ځای دغه د نهو ګنبدو درلوونکی مسجد ودان کړ. ځیني وایي چې د نوبهار معبد فضل برمکي په جامع مسجد سره واړاوه او یعقوب لیث صفاري هم په دې کار کي ونډه اخیستې ده، چې وروسته ئې د «نه ګنبد» نوم خپل کړ. خو ځیني بیا وایي چې د دغه مسجد ودانی د بلخ د سامانیانو د وخت میراث دئ او د ودانولو نېټه ئې د نهمي میلادي پېړی د نیمایي سره سمون خوري.

دغه مسجد د «حج پیاده» یا حاجي پیاده په نوم سره هم بلل کیږي، دا ځکه چې د «حج پیاده» د زیارت تر څنګ پروت دئ. دغه مسجد د مزار شریف د ښار څخه شل کیلو متره لیري د بلخ ولسوالی په «ده

رازي» کلي کې د ولسوالۍ د جنوب په درې کیلو مترۍ کې واقع دئ.

د پورته وضاحت څخه ښکاري چې د افغانستان تر ټولو دوه لرغوني مسجدونه «ادینه» او «نه گنبد» دي. لومړنی مسجد هیڅ شتون نلري خو دوهم موجود دئ، یعنی لومړنی یوازي په نوم او دوهم په فزیکي ډول هم موجود دئ. پس د افغانستان په اوسنیو مسجدونو کی تر ټولو پخوانی ئې په بلخ کې همدا «نه گنبد» مسجد دئ خو لومړنی ودان سوی مسجد په زرنج کې «ادینه مسجد» وو، چې کلونه – کلونه فعال وو، خو نن هیڅ وجود نلري.

اړونده مأخذونه:


۱ – دافغانستان تاریخ؛ احمد علی کهزاد، ژباړن: اورنگزېب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.

۲ .تاریخ افغانستان بعد از اسلام؛ عبدالحی حبیبی، بنگاه انتشارات میوند، کابل، ۱۳۸۶ شمسی.

۳ ـ د افغانستان لنډ تاریخ؛ عبدالحی حبیبی، مترجم: عبدالرؤف بېنوا، (اووم چاپ)، صدیقی خپرندویه ټولنه، کوټه، ۱۳۹۲ لمریز.

۴ ـ تاریخ سیستان، نویسنده: نامعلوم؛ مصحح: ملک‌الشعرأ بهار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۶۶ شمسی.

۵ ـ تاریخ کامل؛ عزالدین ابن اثیر؛ برگردان: حمید رضا آژیر، جلد سیزدهم، چاپ اول (انتشارات اساطیر)، تهران، ۱۳۸۵ شمسی.


## لیکوال، شاعر او ژورنالیست

مسلمان لیکوال، شاعر او ژورنالیست باید خپلي لیکني، خپروني او شعرونه د قران اوسنتو په رڼاکي دخپل ځان او نورو کسانو د خیر، ښېگڼي او نېکمرغۍ په منظور د حقیقت، تقوا او مصلحت پر اساس جوړي یا ترتیب کړي، د حق او رښتیا لیکنه، خپرونه او شعر ووایي، د اسلام د سپېڅلي دین د حقیقت د روښانه او ځلانده لمر او جوهر څخه د شک او اشتباه خیره لیري کړي او خلگو ته د ښه ژوند او عزت د لارو او عواملو ښوونه وکړي، خلگ ښې عقیدې، ښو اخلاقو او اعمالو ته متوجه کړي او خپل فکري، دیني او علمي اثار اوسنۍ ټولني او راتلونکو نسلونو ته د ښه میراث او جاري صدقې په توگه پرېږدي.

الحاج فضل محمد پنهان

# تاریخ نه مسخ کیږي

زموږ پر ستر ټولواک، لوی فاتح، پښتون غازي، ملي مشر، د پاني پت د میدان قهرمان، لوی احمد شاه بابا باندي زموږ دښمنان نیوکي کوي او پرخو ډلو وېشل سوي دي.

لومړی: هغه متعصب انسانان، چي دپردو له خوا روزل سوي او وظیفه ورکول سوې ده، چي زموږ پر ملي قهرمانانو او پوهانو، لکه: حاجي میرویس خان نیکه، شاه محمود (هوتک) د پاني پت د میدان ستر قهرمان، لوی احمد شاه بابا، د میوند زمری سردار محمد ایوب خان، وزیر محمد اکبرخان، سید جماالدین افغان، غازي شاه امان الله خان او شهید سردار محمد داود خان پسي زهرجن تبلغات کوي.

دوهم: هغه تنګ نظر متعصبي فاشستي او سقاوي ډلي ټپلي دي، چي حتا په پېژند پاڼه (تذکره) کي د اسلام او افغان کلمو سره حساسیت لري او وایي، چي په پېژند پاڼه کي دي د اسلام او افغان کلمې نه وي.

دریم: هغه پر پردو خرڅ سوي ګوډاګیان، چي د افغانستان ملي ژبي پښتو، پښتني ثقافت، فرهنګ او کلتور د وژلو او نابودولو لپاره کار کوي.

څلوم: هغه ناپوه، بې شعوره پښتانه دي، چي د دښمنانو او غلیمانو د تبلیغ تر تاثیر لاندي راغلي دي او د تعلیم او زده کړي سویه ئې ټیټه ده، په خپل خیر و شر نه پوهېږي او خپل دوست او دښمن نه پېژني، پر لوی احمد شاه بابا داسي نیوکي کوي:

دغه فاشستان یا سقاویان او یا دپردو ګوډاګیان وایي: ستر قهرمان احمد شاه بابا، چي پر هندوستان به ئې حمله وکړه په زرو انسانان به ئې ووژل، کوم وخت چي به کندهار ته راتلی د هندوستان مشرتابه به ئې بیرته مغولو ته وسپاره.

دوهمه نیوکه ئې پرستر ټولواک د پاني پت د میدان قهرمان غازي لوی احمد شاه بابا باندي داده، چي احمد شاه بابا د چور او غارت له پاره پرهندستان حملې کولې.

درېیم انتقاد د دغو خرڅ سوو او زموږ د ملي قهرمانانو د دښمنانو دادئ، چي وائي: که چیري احمد شاه بابا د پاني پت په میدان کي مرهټانو ته ماته نه وای ورکړې انګرېزان به هندوستان ته نه وای راغلي خو احمد شاه بابا وو، چي برتانوي استعمار ته ئې دا موقع ورکړه چي هندستان اشغال کي.

اوس دلوی احمد شاه بابا پر کورنۍ څه ناڅه خبري کوم او وروسته د دغو متعصبو، فاششتانو، سقاویانو او ستمانو نیوکو ته په علمي او تاریخي دلایلو جواب ورکوم.

په یوه لسمه هجري پېړۍ کې (کندهار) د هندوستان د مغولي امپراتورۍ چې اساس ئې په (۹۳۲هـ‌س) کال کې ظهیرالدین محمد بابر کښېښوی او د پارس صفوي امپراتورۍ، چې اساس ئې په شپاړسمه پېړۍ کې شاه اسمعیل صفوي ایښی وو مشترک ټکی وو، کله به کندهار مغولو وینوی او کله به صفوایانو اشغال کی او کله به مستقیل وو، چې په دغه وخت کي په «ښاري صفا» چې د کندهار ختیځ لوري څه درې مزله لیري واقع ده، په دغه ځای کې د پښتنو یوه درنه کورنۍ اوسېدله، چې سدوزي بلل کېدل، د دغې قبیلې د مشر نیکه نوم سدو خان وو، چې په (۹۶۵-۱۰۳۱ هـ‌س) کې ئې محلي امارت تاسیس کړی وو، چې د پارس صفوي پاچا لومړی عباس (۹۹۵-۱۰۳۸ هـ‌س) هم منلی وو.

زرداد خان په خپل کتاب صولت افغاني په ۲۲۷ مخ کې کښلي دي، چې سدوخان ډېر زړه ور سړی وو، د بارګزو، غلجو او هزاره وو بغاوتونه ئې ارام کړل، چې په (۱۰۳۱هـ‌س) کال کې مړ سو، وروسته د دغه مشرزوی خضرخان د سدوزو مشر سو، خضر خان پنځه کاله مشر توب وکی او په (۱۰۳۶ ه ش) کال وفات سو، د دغه زوی (سلطان خداداد) د ابدالیو مشر سو او د صفوي پاچهۍ له خوا د سلطان لقب ورکول سو، د هندوستان مغولي امپراتورۍ د پښتنو د جنګولوله پاره د صفوي پاچهۍ پر ضد د غلجو مشر «ملخي توخي» ته د سلطان لقب ورکی د غلجو د مشر په حیث ئې و مانه، دغه دوه پوه سلطانان، چې د پردو په چلو ښه پوهېدل او نه ئې غوښتل، چې پښتانه د نورو د ګټو د ساتلو لپاره په خپلو منځو کې سره ووژني (لکه دا اوس چې پښتون غریب وژل کیږي ګټه ئې روسان، ایرانان، پاکستان ... او نوورې.) نوموړو دوو سلطانانو د دې لپاره چې پښتانه ونه وژل سي په خپلو منځو کې ئې غونډې سره وکړې او د جلاک ګرماب او د کلات پل سنګي د ابدالیو او غلجیو ترمنځ سرحد وټاکل سو. سلطان د ابدالیو مشر ترړوب پورې د خپل اقتدار غولی پراخ کړی، تردې سوبې وروسته ئې ابدالي امارت خپل ورور شېرخان ته ور پرېښود، په خپله د شېرخان د نایب په حیث ئې کار کاوه.

د شېرخان مناسبات ډېر ژر د کندهار د صفوي حاکم سره خراب سول، په ښار صفا کې جنګ پېښ سو صفوي حاکم ماته وخوړل، چې تردې ماتې وروسته د ښار صفا او کندهار ترمنځ تګ راتګ بندسو د کندهار صفوي حاکم، چې پوه سو چې د جنګ د لارې نه سي بریالی کېدای خپله شیطاني پالیسي ئې په کار واچول «Divid and rule» تفرقه واچوه حکومت وکه، چې د شېرخان ترېور شاه حسین ئې د شیرخان په مقابل کې پورته کی، د میرزا لقب ئې ورکی او د ابدالیو د قوم یا ټبر مشري ئې ورکړه. شاه حسین د صفوي حاکم په مرسته یا کومک پرشېر خان یاندې د یرغل یا حملې نیت وکی، شېرخان چې خبر سو مجبوراً ئې د ډهلي د مغولي درباره مرسته وغوښتل، چې د هندوستان مغولي پاچاه د شېرخان په دې غوښتنه ډېر خوشحاله سو، دا ځکه چې د ایران صفوي پاچهان شیعه ګان وه او د هندوستان مغولي پاچهان سنیان وه، چې په دغه وخت کې شاه محسین سدوزي خلیل خان غلجي وواژه، خلیل خان غلجی هغه څوک وو، چې د ابدالیو پښتنو د نفاق لپاره ئې د صفویانو په ګټه کار کاوه، شېرخان د (۶۵) کالو په عمر په ښکار کې له آسه راولوېدئ او ومړ، پرځای ئې مشر زوی سرمست خان د ابدالي ټبر مشر سو، سرمست خان چې مړ سو زوی دولت خان ئې کوچنی وو، د قام مشري

حیات سلطان ته ورسېده، کوم وخت چي دولت بلوغ ته ورسېدی حیات سلطان د ابدالیو مشري دولت خان ته ورکړه. دولت خان د کندهار صفوي حاکم ته دجنګ اعلان وکی، صفوي حاکم لښکر د «فرخ» قزلباش په مشری و ښار صفاته ولېږی، په جنګ کي (فرخ) قزلباش د پښتنو په لاس ووژل سو او لښکر ئې په تېښته په کندهار ننوتی، چي په دې ماتي سره د کندهار د حاکم نور قهر او غضب راوپارېدی او دیوه مجهز لښکر سره په خپله د دولت خان مقابلې ته راووت اوسخته ماته ئې ورکړه او بیرته کندهار ته په تېښته راغلی. پسله دې بري څخه حیات سلطان او فېروزخان د خپل پر ننګ مين وراره توره، مېړانه او مشر تابه ومنی او د مشری څخه تېر سول هندوستان ته ولاړه او د صفوي حکومت پرضد ئې د ډهلي د مغولي پاچاه اورنګزیب (۱۰۶۸-۱۱۱۸ هـ س) کال کي ئې مرسته و غوښتل اورنګزیب پنځه سوي منصب ورکی او حکم ئې وکی، چي ددکن شخړي ترفیصله کېدو پوري دي په ملتان کي وي، په (۱۱۱۴ هـ س) کال د اصفهان پاچا له لوري سفاک ګرجي ګرګین وکندهار ته د نایب الحکومه (والي) په حیث راولیږل سو، سمدستي ئې د دولت خان د وژلو لپاره لیځي راو نغښتل، عزت خان او اتل خان ئې د توریالي دولت خان پرضد راوپارول، په (۱۱۱۵ هـ س) کال په شپه کي نابېره د دولت پر کلا وروختل توریالي او ننګیالي دولت خان او زوی نظرمحمد خان په جنګ کي ووژل سول، چي د خدای بخښلي (دولت خان) دوه زامن (روستم خان او زمان خان) چي زمان خان د ستر تولواک لوی فاتح، د پاني پت د میدان قهرمان لوی احمد شاه بابا پلار وو.

۱_ رستم خان دخپل پلاره تروژلو وروسته د پښتنو ابدالیو مشر وټاکل سو، چي څلور کاله ئې مشر توب وکی، وروسته دصفوي حکومت پرضد باندي د بلوڅو په لمسولو کي د لاس د درلودلو په ګناه د سفاک ګرجي ګرګین زندان ته ولوېدی، په (۱۱۱۹ هـ س) کال کي په زندان کي ووژل سوه.

۲_ زمان خان چي د دولت خان کشر زوی وو د پلار تروژلو وروسته ئې د سفاک ګرجي ګرګین په دربار کي دیرغمل په توګه دژوندشپې او ورځي تېرولې، بیا کرمان ته فراره سو او تر (۱۱۲۲ هـ س) کال پوري دصفوي حکومت ترتعقیب لاندي وو، په (۱۱۲۳ هـ س) کال چي دګرګین وراره خسروخان دصفوي پاچاه حسین په (۱۱۰۵ څخه ۱۱۳۵ هـ س) کال په حکم کندهار ته دحاجي میرویس خان نیکه دوژلو لپاره راولېږی، چي د سفاک ګرګین غچ واخلي خسرو دیوه لوی لښکر سره مخ پر کندهار راوپاڅېد زمان خان، چي په کرمان کي وو د خان ملګری کی او د خان سره ئې د حاجي میرویس خان د وژلو لپاره مخ د کندهار پر لوري رارهي کړ، خسروخان، چي مشهد ته راورسېدی د عبدالله خان سدوزي سره ئې وکتل او د کندهار په نیولو کي ئې مرسته څني وغوښتل، څه وخت چي زمان خان د عبدالله خان سره ولیدل پر تولو زړو کورنیو اختلافاتو ئې د پښتني دود سره سم ډېره کښېښول، د خسروخان په لښکر کي عبدالله خان او زمان خان مجبوراً ترفراه پوري ورسره ملګري وه، څکه چي دوی د خپلي یوې پښتني پاچهي په مقابل کي د صفویانو مرسته کول پیغور ګڼله اوپه یوه پلمه ئې ځانونه د خسرو خان څخه خلاص کړل او د خپل لښکر سره بیرته هرات ته راغلل او د پښتني پاچاهي اعلان ئې وکړ، چي د هرات پاچا عبدالله خان سدوزي زمان خان چي د یوه مشاور په توګه کار ورسره کاوه په هغه وخت کي د پښتنو دادود وو، چي پاچا یا امیر به د جرګې له خواټاکل کېدی، په (۱۱۳۲ هـ س) کال کي پښتني لوی جرګې د مشر توب واک زمان خان سدوزي ته

ورکی، دزمان خان تر دووکالو اوپنځو میاشتوپوري د پښتنو مشروو، زمان خان چې په (۱۱۳۵ هـ س) کال کې وفات سو، دوه زامن (ذولفقار خان، مشرتولواک دپاني پت دمیدان قهرمان لوی احمدشاه بابا ځنې پاته سوه، دزمان خان تروفات وروسته دهرات پښتني جرګې دعبدالله خان زوی محمد خان پاچا وټاکی، چې یو کال وروسته نوموړي جرګې پاچهي ذولفقار خان ته وسپارل، دوه کاله ئې د یوه انتخابي مشر په توګه کار وکی، پسله دوه کاله جرګې دهرات پاچهي دعبدالله خان دوهم زوی (الله یار خان) ته ورکړه په (۱۱۴۲ هـ س) پاچهي دالله یار خان څخه واخستل او بیا ئې ذولفقار خان ته تسلیم کړه، چې په (۱۱۴۳ هـ س) کال افشار نادر د دپرشو زرو سپرو سره پر هرات حمله وکړه، ذولفقار خان پنځه میاشتي دافشار نادر سره مقابله وه کړه په اخر کې پوه سو چې دالله یار خان دله ملګري نه ورسره کوي، موضوع ئې جرګې ته ورناندي کړه، جرګې د دوهم ځل لپاره الله یار خان وټاکی، ذولفقارخان د خپل کشر ورور احمدخان سره دسبزوار (شندنډ) او دفراه له لاري کندهار ته راغلل، چې په دې وخت کې شاه حسین هوتک په کندهاره کې پاچا وو، چې هغه بندیان کړل. (وګورئ د احمدشاهي عصر نومیالي: ۱_۲_۴ مخونه)

خدای بخښلي علامه رشاد بابا د نوموړي کتاب په پنځم مخ کې لیکي: «ذولفقار خان او احمد خان د شاه حسین د پاچهۍ ترسقوطه پوري په دربار کې نظر بنده وه.»

مرحوم علامه عبدالحی حبیبي دافغانستان دلنډ تاریخ په ۲۲۹ مخ کې لیکي: «افشار نادر د زمان خان ابدالي زامن ذولفقار خاو او احمد خان چې په کندهار کې د شاحسین هوتک په امر بندیان وه، افشار نادر چې کندهار ونیوی هغه ئې له بنده ازاد کړل اومازندران ته ئې دکورنۍ سره فراره کړل، ذولفقار خان په مازندران کې ومړ، په (۱۱۵۴ هـ س) کال چې افشار نادر د هندوستان، سند، افغانستان، بخارا او خوارزم تر نیولو وروسته پارس ته راستون سو په مازندران کې فراري پښتنو ورسره ولیدل احمدخان په دغه وخت کې ۱۹ یا ۲۱ کلن زلمی وو، چې په دغو مشرانو کې دافشار نادر دربار ته ورغلی وو.»

د افشار په لښکروکي ۱٦۰۰۰ زره پښتانه عسکر وه، افشار نادر د دغو پښتنو د لښکر پریوه ټولۍ باندي احمد خان د خانداني اصالت او اعتبار په لحاظ منصبدار مقرر کی، احمدخان د خپلې منصبدارۍ په دوره کې د توري او مېړاني نوم ولاړ، د قفقاز په جنګ او نورو جنګونو کې دوست او دوښمن توره او تدبیر ومنل. د خورشید جهان تاریخ په (۱٦۸ مخ) کې کښلي دي: په داغستان کې چې افشار نادر له (سرخایي خان لکزي) سره جنګېدی په دغو جنګو کې ابدالیو پښتنو په تېره احمدخان (احمدشاه بابا) ډېر سخت جنګونه وکړل (لکزي) جنګیالي ئې مات کړل، چې تردغه پرلپسې فتوحاتو او بریالیتوبو وروسته افشار نادر احمدخان د خپل شاهي ګارډ قومندان وټاکی. افشار نادر (۱۱٦۰ هـ س) کال دځلرمي خور پریوولسمه د یکشنبې په شپه (۱۷۴۷م) کال دجون د میاشتي پر لسمه مشهد ته نږدې دخبوشان د فتح اباد په کلي کې په نیمه شپه کې د خپلو قوماندانو(محمد خان قزرباش او صاح محمد خان قاجار) له خوا ووژل سو، دمړیتي پر لسمه نېټه ئې جسد مشهد ته راوړ، د خیابان په هغه هدیره کې ښخ کړ، چې د مخه د همدې مقصد لپاره جوړه سوې وه.

ستر تولواک احمد شاه بابا او نور پښتانه افسران د سلطان میدان، ترشیرز، تربت حیدري، تون او فراه له لاري کندهار ته راغله او په کندهار کې ئې د پښتنو په هغه ملي جرګه کې چې دپاچا دانتخابولو لپاره د شیرسرخ په زیارت کې جوړه سوې وه او د کندهار د مختلفو قومونو مشرانو؛ لکه: نور محمد خان افغان د غلجو مشر، محبت خان دپوپلزو مشر، نصر الله خان دنورزو مشر، حاجي جمال دبارکزو مشر، موسی خان

د ساکزو مشراو نورو قومي مشرانو ګډون پکښې کړی وو، دې ملي جرګې د شوره ډکي اته غونډي وکړې، خو د قبیلو مشرانو ونه سوکولای چي یو د بل حکمراني پرځان ومني، نورمحمد خان میر افغان د مشر تابه تجربې او نفوذ له پلوه د دغه کار وړ ښکار یده، خوځنګه چي دتند مزاج خاوند وو، ونه ټاکل سو، دوهم سړی حاجي جمال خان وو، هغه هم دومره پوخ، متین او د نفوذ څښتن وو، چي نورمشران د ده د راتلونکي استبداد، قدرت او استیلا څخه بېرېدل، نو د جرګې ټولو مشرانو د پاچاهی لپاره داسي شخص لټاوه، چي افغاني ازاد مزاج، ملي دیموکراسي له اصولو سره ئې د سمون له لاري په راتلونکي کي پردوی په استبداد او زور پر دوی حکومت ونه کړي اوپه عین وخت کي د غښتلي اوقوي تبر څښتن هم نه وي، د دې ستري تاریخي جرګې په نیمه غونډه کي دټولو خلکو سترګي و احمدخان ته وې چي ۲۵ کلن نوښتګر، زغمونکی، پوه آزمویلی زلمی وو، چي هم ئې قبیله کوچنۍ وه (سدوزي په کندهار کي ډېر لږ دي) پښتنو مشرانو دا باور درلو، چي دا کشر زلمی پر دوی په استبداد او شدت حکومت نسي کولای ځکه ئې نو (ستر ټولواک دپاني پت قهرمان احمدشاه بابا) په پاچهۍ ومانه او د دې ښه انتخاب له امله ئې دپښتنو له لاسه وتلی لرغونی برم بیا راژوندی کړ، چي په دې وخت کي صابر شاه ملنګ د استاد لایخوار کابلي زوی د غنمو اوړي پرې او د لوی احمد شاه بابا په پګړۍ کي ئې دخول په توګه وټومبل. (وګوری دافغانستان لنډ تاریخ : ۲۸۰، مخ)

د تاریخ حسین شاهي مولف امام الدین حسیني د کابل د نواب ناصرخان په حواله لیکي: «زه یوه ورځ د لوی احمد شاه بابا دربارته ورغلم چي احمدشاه بابا پرتخت ناست وو او یولځ لغړ او په خاورو لړلی ملنګ ئې په غیږ کي غځېدلی وو، هغه ملنګ به په وار – وار احمدشاه بابا تر پزي او غوږ نیوی او ویل به ئې: اې افغانه! ماپاچا کړې. کله چي ما دا تاق دخلکو څخه پوښتنه وکړه، چي دا څوک دئ؟ هغوی راته وویل چي دا صابر شاه ملنګ نومېږي.»

د لوی احمدشاه بابا د پیدایښت په هکله د مورخینو ترمنځ اختلاف دئ.

اروښاد علامه حبیبي په خپل مشهوره اثر (لوی احمدشاه بابا) کي لیکلي دي: له تاریخي پلټونو څخه څرګند یږي چي لوی احمدشاه بابا په ۱۱۳۵ هـ س په هرات کي زیږېدلی دئ.

محمدولي زلمي په خپل کتاب (کندهار) کي لیکلي دي: احمدشاه بابا د زمان خان زوی د دولت خان لمسی دئ، په ۱۱۳۵ هـ س کال کي په هرات کي پیداسوی دئ. (وګورئ کندهار ۱۳۵ مخ)

فیض محمد خان هزاره په سراج التواریخ کي لیکي: د احمدخان نیکه ګان د ملتان وه او احمدشاه بابا په ملتان کي زوکړی دئ، چي د خپل پلار زمان خان سره اول کندهار او بیا هرات ته تللی دئ.

په تاریخي حسیني کي کښل سوي دي: احمد شاه بابا په ملتان کي زوکړی دئ.

غلام محمد غبار په خپل مشهوره تاریخ کي لیکلي دي: احمدخان د زمان خان زوی په هرات کي زیږېدلی دی. (وګوری افغانستان در مسیر تاریخ ۳۵۴ مخ)

داو د احمدشاه بابا د کورنۍ په اړه یولنډ معلومات، چي وروسته به دفاشستي، ستمي او متعصبه انتقادونو ته، چي زموږ پر علمي، تاریخي او سیاسي شخصیت سترټولواک، لوی فاتح، پښتنو غازي، د پاني پت پر قهرمان اعلیحضرت لوی احمد شاه بابا باندي انتقاد کوي په علمي او تاریخي دلایلو ردوو.

نور بیا...

عبدالکریم عامر/ لورالایي

# د زین الحلم څلور قلمي نسخې

زین الحلم د پښتو ترجمه سوی منظوم کتاب دئ، چي ماته ئې دا ترجمه کوونکي لیکوالان مالوم دي لکه: عبدالکریم کاکړ کندهاری [۱]، په ۱۲۳۴ ق = ۱۸۱۸ کي ئې لیکلی دئ [۲]، چي منظوم یادیږي. د دې مترجم اثر ما نه دی لیدلی. ویل کیږي چي د ملا عبدالکریم د زین العلم په اقتفاء مفصلاً د ملا ولي داد کاکړ زین الحلم په پښتو ترجمه سوی دئ، خو نېټه که وګورو د ملا ولي داد کاکړ نېټه تر مخته ده. والله اعلم

یو لیکوال ئې سعدالله جان دئ، چي د پلار نوم ئې آدم خان دئ، ده هم د عین العلم منظومه ترجمه کړې ده، نسخه ئې له حمدالله صحاف سره خوندي ده. ما یو جلا لیکنه ورباندي کړې ده.

یو بل لیکوال ئې زموږ په ادبیاتو کي ملا شیر داد کاکړ یاد سوی دئ [۳]، چي د کندهار وو، کوم شعرونه چي د ده له نامه سره د مترجم په توګه راوړل شوي دي، هغه د ملا ولي داد دي، نور ئې په اړه ما څه نه دي لیدلي، ځکه ورباندي څه نه وایم.

یو مترجم ئې ملا ولي داد کاکړ دئ، چي د مثنوي په رنګ کي ئې لیکلی دئ، چي په چهارشنبه د صفري پر ۲۷ نېټه ۱۲۲۴ کي ئې له نظمه فارغ سوی دئ [۴].

دا کتاب د عربي د عین العلم ترجمه ده، عین العلم د محمد بن عثمان البلخي کتاب دئ، چي د کیمیايې سعادت په ډول لیکل سوی دئ [۵]. حنیف خلیل دا مصنف علي بن سلطان محمد القاري یاد کړی دئ [۶] بېلبره (موضوع) ئې اخلاق دي:

چي پښتو شه عین العلم

نوم یې جوړ شه زین الحلم

په پښتو ادبیاتو کي د دې کتاب دغه نسخې درې نسخې تر اوسه پوري ماته څرګندي سوي دي:

۱ - د افغانستان د ملي آرشیف نسخه، چي پر ۱۵۵ / ۳ نمبر باندي خوندي ده. کاتب ئې حبیب الله دئ، نېټه نه لري، خط ئې نسخ دئ، ۲۹۵ پاڼي لري [۷].

۲ - عبدالقدیر مشتري په خپل فهرست کي وايي، چي یوه نسخه یې له حبیب الله رفیع سره خوندي ده [۸].

۳– دا نسخه له پروفیسر صاحبزاده حمیدالله سره په پښین کې خوندي ده، چې ۴۰۰ مخونه لري، کاتب ئې حسن دئ، نېټه ئې ۱۲۳۴ ق = ۱۸۱۸ ء ده، خط ئې نسخ دئ[۹].

زه د پښتو ادب و څېړونکو ته له دغه درو(۳) نسخو په ایسته څلور(۴) داسي نسخې ور پېژنم چې تر اوسه چا نه دي ذکر کړي:

۱– دا نسخه ۲۱ × ۱۵ کچه لري. متن ئې ۱۵ × ۱۰ سنتي میتر دئ، په یوه مخ کې ۱۳ دیارلس کرښې راغلي دي، خط ئې نسخ دئ. د کاتب نوم ئې نه دی څرګند، د کتابت نېټه ئې هم نسته. دا نسخه ۱۱۹ پاڼې، ۲۳۹ مخونه لري، په توره سیاهي پر خړ کاغذ باندي لیکل سوې ده، دپای له خوا نیمګړې ده، چې داسي پیل کیږي:

" رب یسر بسم الله الرحمن الرحیم تمم بالخیر

شکر شکر د رحمان دی

پر ښندل راته د توان دی

چي پښتو مي دین منظوم کړ

چي آسان پر هر افغان دی

غه له کل عیب چي پاک دی

پر تعذیب تنعیم بې باک دی

هغه کس د ده دوستار دی

چي په خوی د ده خوی ناک دی

بیا غالي تاج د درودونو مکلل له سلامونو

پای یې داسي دی:

"اول نه د غواړي دله

له مېړه طلاق هیڅ کله

په غوښتل کښي یه عذاب دی

د دغه ښځي په باب دی

دووم حق یه اطاعت دی

پر مباح چه هر حالت دی

چه وارد دا رنګ خبر دی

فرمایلی پیغمبر دی

ایما امراءة ماتت و زوجها..."

ترقیمه نه لري.

لیک دود:

(دي) د " دی " دپاره، (چه) د " چي " دپاره، د (له، په) رنګ په نورو تورو پوري منښتی راوړي. (کښ) د " کښي، یا کي " دپاره، (یه) د " یې " دپاره، (څ) د " ځ " دپاره کاږي.

د شنګرف کار هم پکي سوی دئ د هري مصرعې په پای کي څلور یا پنځه ټکي په سره رنګ (شنګرف) باندي راوړي، چي د مصرعې بېلوالی ښیي. د کاتب خط خوندور دئ، دې نسخې ته او به هم ځای – ځای ور رسېدلي دي، په دې نسخه کي د خوند خبره دا ده، چي کاتب په هغه کرښه کي ګران توري ته مانا هم په کوچني حروفو کي کاږي، لکه (اعراب) ته (غروال)، (سدید) ته (راست) کاږي. کوم ځای چي حدیث یا آیت راوړي، د هغه پر سر باندي سره (شنګرف) کرښه

کاږي. دا نسخه د مولوي رحمت الله مندوخیل په کتابتون [۱] (ړوب) کي خوندي ده.

۲ – دا نسخه ۲۷ × ۱۷ کچه لري. متن ئې ۵۰. ۲۱ × ۱۲ سنتي میټر دئ، په یوه مخ کې ۱٦ کرښې راغلي دي، خط ئې نسخ دئ. د کاتب نوم ئې ملا مراد ولد ملا فقیر درهي دئ. د کتابت نېټه ئې نسته، خو ربیع الاول روز جمعه بوقت چاشت ورسره لیک دئ. دا نسخه ۱۹۸ پاڼي، ۳۹۷ مخونه لري، په توره سیاهي پر ژړ کاغذ باندي لیکل سوې ده، دوه کرښیزه جدول لري، چي په شنگرف باندي جوړ سوی دئ، داجدول درې کالمه دئ، ځای – ځای جدول نه لري، او دبل چا خط ښکاري، چي دا څرگندوي، چي دویم سړي هم څه لیکنه پکي کړې ده. دا نسخه داسي پیل کیږي:

"شکر شکر د رحمان دی

پر ښندل راته د توان دی

چي پښتو مي دین منظوم کړ

چي آسان پر هر افغان دی

غه له کل عیب چي پاک دی

پر تعذیب تنعیم بې باک دی

هغه کس د ده دوست دار دی

چي په خوی د ده خوی ناک دی

بیا غالي تاج د دردونو

مکلل له سلامونو

پای یې داسي دئ:

پس اتصال به ور دوڅار شي

ور ښکاره به ډېر اسرار شي

"متصف به په بقا شي

د خپل عصر به تنها شي

بهرمند به په یقین شي

له شاهانو به د دین شي

یا الله یا علیم، یا رحمن، یا رحیم، یا صبور، یا شکور، یا غفار، یا قهار.

ترقیمه:

"تمت تمام شد بعون الله در شهر ربیع الاول در روز جمعه به وقت چاشت تمت تمام شد کار من نظام شد، شیطان من غلام شد، شیطان لعین خوار شد، دست خط ملا مراد ولد ملا فقیر درهي، چي و خط و ته نظر د ناظران شي، و دعاوته په طمع کاتبان شي، تمت تمام"

لیک دود:

(څ) دځ لپاره، (کښ) د کښي لپاره، (خله) د خوله لپاره، (چه) د چي لپاره، (ي) لاندي دوه ټکي

---

[۱] د مولوي رحمت الله مندوخېل د کتابتون د نسخو یو فهرست په "لیکني" مجله کي چاپ شوی دئ، چي څېړونکی ئې مولوي عبدالخالق مندوخېل دئ، په هغه کي هم یوه نسخه د زین الحلم په نامه راغلې ده، چي مخونه ئې ۳۰۰ ښيي او د پیل شعرونه چي کوم راوړي، هغه له دې نسخو سره سمون نه خوري، نو ښايي دا بیا بله نسخه وي. څېړونکی تېروتی دی، چي اندازاً مصنف ملا عبدالکریم کاکړ راوړي.

لري، (ځمور) د زمور لپاره، (دي) د دې لپاره او (ے) هم کارېږي.

په دې نسخه کې د ګرانو تورو سره نزدې په هغه عبارت کي مانا هم کښل سوې ده، دا نسخه په درې (۳) کالمي رنګ کې کښل سوې ده، چي د بيت ترتيب ئې په مصرعه پسې مصرعه غوندي ساتلای دئ، د کالم جدول هم لاسي دئ، کرښې ئې کږې وږې دي، د کالمونو ترتيب ئې په پای کې نسته، د نثر په شان مصرعې راوړي، خو کرښې په هغه شمېر دي، د هري مصرعې په پای کې ګول سور ټکی راوړي او پر آيتونو باندي د شنګرف ليکه برسيره کشوي، د پای ځو مخونه ئې او بځو (چينجيو) وهلي دي، چي ډېر لوی کومبړ ئې پکي جوړ کړی دی. او بو هم ځای ـ ځای تاوان ور رسولای دئ. دا نسخه د مولوي رحمت الله مندوخيل په کتابتون (ړوب) کي خوندي ده.

۳ – دا نسخه له ما عامر سره خوندي ده، چي ۲۰ × ۱۵ کچه لري، متن ئې ۱۵ × ۱۰.۵۰ سنتي ميټر دئ، په يوه مخ کي ئې ۱۴ کرښې راغلي دي، خط ئې نسخ دئ، د کاتب نوم ئې نسته، د کتابت نېټه هم نه لري. دا نسخه ۱۸۲ پاڼي، ۳٦۲ مخونه لري. ۲ پاڼي د خړ کاغذ په ميان کي لري، چي د متن برخه نه ښکاري، په توره سياهي پر شين بخون غوندي کاغذ باندي ليکل سوې ده، د هري مصرې په پای کي سره او تور ټکي لري، د نثر په رنګ ډول کښل سوې ده (د نظم د مصرعو اوډنه نه لري)، کوم ځای چي عربي راسي، هلته برسيره ور باندي سره کرښه کارېږي، دا نسخه تر بسم الله وروسته داسي پيل کيږي:

شکر شکر د رحمان دی

پر ښندل راته د توان دی

چي پښتو مي دين منظوم کړ

چي آسان پر هر افغان دی

غه له کل عيب چي پاک دی

پر تعذيب تنعيم بې باک دی

هغه کس د ده دوستار دی

چي په خوی د ده خوی ناک دی

بيا غالي تاج د درودونو

مکلل له سلامونو

پای يې داسي دی:

پس اتصال به ور دوځار شي

ور ښکاره به ډېر اسرار شي

متصف به په بقا شي

د خپل عصر به تنها شي

بهرمند به په يقين شي

له شاهانو به د دين شي"

ترقيمه يې نيمګړې ښکاري:

"شد بتوفيق کريم لا ينام، اين کتابت روز ادينه تمام"

ليک دود ئې داسي دئ:

(چه) د چي لپاره، (م) د مي لپاره، (له، په) د پای (هـ) نه لري. دغه رنګه چي کوم توري په پای کي (هـ) ولري، هغه هم نه راوړي، لکه (دليلون) د

(دلیلونه) لپاره کاږي، (ځ) دځ لپاره راوړي، (ښ) د کښـــي لپـــاره، (ک) د گ لپـــاره، (دي) د دی لپــــاره، راوړي.

د دې نسخې د وروستۍ مصرعې (لـه شاهانو) وروسته برخه پرې سوې ده، چې بل چا بیا خړ کاغذ ورسره منښلولی دی او (به د) ئې ورسره کښلي دي، د ترقیمې دغه رانقل کړې برخه پاته ده، چې ښايي نور څه ئې د کاغذ د کونج د نه پاته کېدو له جوره ورسره تللي وي.

د کاتب خط هم ښه دئ، په سر پرې قلم ئې کښلی دی. په ویلو کي گراني نه پېښوي، پر ځینو مخونو باندي ئې له گرانو تورو سره مانا هم راوړې ده.

د مخونو لپاره ئې له رکابونو کار اخیستل سوی دئ، بشپړه نسخه ده، لومړي درې مخونه ئې د ځې له خوا کېدو دي، چې خیني بیتونو ته ئې تاوان رسېدلی دئ، د کتاب مخه په تور څرمن کي پوښلې وو، چې پاڼي یې ختلي وي اوس ما (عامر) په صحاف د څرمني سور پوښ ور اچولای دئ، چې ډېر خوندور دئ او نسخه ئې له ورکېدو څخه راگرځولې ده.

۴ – دا څلورمـه نسـخه چـي ۲۰.۵ س م کچـه لري، متن ئې ۱٦.۵ سنتي میتر دئ، په یوه مخ کي ئې ۱۴ کرښي راغلي دي، خط ئې نسخ دئ، د کاتب نوم ئې نسته، د کتابت نېټه هم نه لري. دا نسخه ۳۲۴ مخونه لري، پر شین بخون کاغذ باندي په توره سیاهي باندي کتابت شوې ده، د سر له خوا بشپړه او د پای له خوا نیمگړې ده، تر بسم الله وروسته داسي پیل کیږي:

شکر شکر د رحمان دی

پر ښندل راته د توان دی

چي پښتو مي دین منظوم کړ

چي آسان پر هر افغان دی

غه له کل عیب چي پاک دی

پر تعذیب تنعیم بې باک دی

هغه کس د ده دوستار دی

چي په خوی د ده خوی ناک دی

بیا غالي تاج د درودونو

مکلل له سلامونو

پای یې داسي دی:

پس اتصال به ور دوځار شي

ور ښکاره به ډېر اسرار شي

متصف به په بقا شي

د خپل عصر به تنها شي

بهرمند به په یقین شي

له شاهانو به د دین شي یاالله

د نسخې لیک دود داسي دئ، چي (ے) کاږي، لگه شي، (ښ) د کښي لپاره، (چه) د چي لپاره، (ي) په دغه رنگ، (له په) په بل توري پوري گډ لیکي، د پای (ه) نه ورسره راوړي او (ځ) د ځ لپاره کاږي.

داسي ښکاري چي له دې پس هم یو مخ لري، چي رکاب یې "یا علم" راغلی دئ، د کاتب خط په ویلو کي گراني نه پېښوي، پر نسخه باندي د نظم گمان نه

کیږي، د نثر په رنګ کي لیکل شوې ده، د هري مصرعې په پای کي درې څلور تور ټکي کاږي، نسخې ته د خړ کاغذ پیڼې ډیري لګیدلي دي، د نسخې پر لومړي مخ باندي په شنه او سره خط د بل چا یادانبتونه هم لري، چي د کتاب او مصنف نوم ذکر کوي، پر آیتونو او خاص تورو باندي کاتب برسېره د تور خط لیکه هم کښلې ده. دا نسخه د میا طارق شاه په کتابتون (پېښور) کي خوندي ده.

مأخذونه:


(۱) حبیبي، عبدالحی (د افغانستان تاریخي پیښ لیک) کابل چاپ (۱۳۵۳ ل.) ۱۷۹مخ)، (هیوادمل، زلمی (فرهنګ ادبیات پښتو)، جلد ۲، کابل چاپ، ۱۱۹مخ.

(۲) حبیبي، عبدالحی (پښتانه شعراء)، لومړی ټوک، کابل چاپ (۱۳۲۰ ل.)، ۳۲۷مخ له حبیبي ډاټ کام څخه، محمد ولي ځلمی (د کندهار مشاهیر) کندهار چاپ، دریم ۲۰۱۱ ء – ۲۲۷مخ (آریانا دایرة المعارف ٦، کابل چاپ (۱۳۵۵ ل.)، ۵۵۹مخ.

(۳) هیوادمل، زلمی (فرهنګ زبان و ادبیات پښتو) کابل چاپ (۱۳۵٦ ل.)، ۲٦۳مخ.

(۴) ځلمی، محمد ولي (د کندهار مشاهیر) کندهار چاپ، دریم ۲۰۱۱ ء – ۲۲۷مخ (د افغانستان تاریخي پیښ لیک)، ۱۷٦مخ (رښتین، صدیق الله (پښتانه شعراء)، کابل چاپ، (۱۳۲۱ ل.) ۴۰٦مخ.

(۵) عبدالرحیم، مولوي (لباب معارف العلمیه في مکتبه دار العلوم اسلامیه ...) آګره چاپ، ۱۷۷ مخ.

(٦) حنیف خلیل (A catalogue of Pashto manuscripts in Pakistan) پېښور چاپ ۲۰۰۹ ء، ۵۹ مخ.

(۷) مشتري، عبدالقدیر، حیدري، نجرابي (فهرست نسخ خطي پشتو آرشیف ملي افغانستان)، کابل چاپ، ۷۸مخ.

(۸) مشتري، عبدالقدیر، حیدري، نجرابي (فهرست نسخ خطي پشتو آرشیف ملي افغانستان)، کابل چاپ، ۷۸مخ.

(۹) حنیف خلیل (A catalogue of Pashto manuscripts in Pakistan)، پېښور چاپ ۲۰۰۹ ء، ۵۹ مخ.

واحد فقیري / واشنګټن

# د افغانستان په سیاست کې د قومي او مذهبي مشرانو نقش ته یو نوی نظر

(لومړۍ برخه)

مقدمه: څه وخت پخوا، دا ذهني سودا راولوېده، چې د افغانستان د کلیوالي ژوند، اقتصاد، او سیاسي جوړښت په باره کې څه منظمه او پراخه مطالعه وکړم. د موضوع د روښانه کولو لپاره مي پدې هکله څو مشهور کتابونه، البته څه پخواني او څه نوي، وکتل. د دغو کتابونو له جملې څخه یو د مېرمن سینځل نوید عالي او پر علمي میتودونو باندي برابر کتاب (په افغانستان کې ۱۹۱۹ - ۱۹۲۹: د اجتماعي بدلون په مقابل کې مذهبي عکس العمل) یو کرت بیا له سره څه په دقت ولوست.

پروفسور سینځل نوید له اصله افغانه ده. یو وخت د کابل په پوهنتون کې استاده وه. عالي تحصیلات ئې زیاتره په متحده ایالاتو کې کړي دي او اوس د امریکا د اریزونا ایالت په پوهنتون کې د مرکزي اسیا تاریخ تدریسوي. لنډه دا چې مېرمن نوید د افغان – امریکن د ټولني له علمي او اکاډمیک کدرونو او افتخاراتو څخه ده.

د مېرمن نوید د کتاب اصلي موضوع د غازي امان الله په دوره کې د اجتماعي بدلونونو په وړاندي د دیني او مذهبي مشرانو عکس العمل دئ او هم د مطرح مخالف مذهبي اشخاصو د ژوند او عقایدو د روښانه کولو یوه ارزښتناکه هڅه ده. پروفسور سینځل نوید واقعاً ډیر زحمت ایستلی دئ او د خپل کتاب لپاره ئې ډیر زیات اول لاس اسناد او کتابونه لوستي دي ښه او ژور تحقیق ئې کړی دئ او په مجموع کې ئې د تاریخي او سیاسي حوادثو په اړه قضاوت منصفانه دئ.

پدې کتاب کې لیکواله هڅه کوي چې د افغان په سیاست کې د مذهبي خلګو او ملایانو د فعال او بارز نقش د اخیستلو تاریخي سلسله وڅېړي، مهم عوامل ئې راپیدا کړي او سیاسي او تاریخي سوابق ئې راوسپړي. دغه راز کتاب نه یوازي د غازي امان الله خان اصلاحات او پالیسي راپېژني، بلکي د هغه د مذهبي مخالفانو د سیاسي قدرت د مخ پر زیاتېدو تاریخي پروسه هم راته تشریح کوي.

زما د همدې لیکنې د اصلي ټکي د شرح لپاره د مېرمن نوید د کتاب یوه بله جالبه مفکوره دا ده، چې لیکواله لیکي: « په ۱۹ پېړۍ کې د کابل د سلطنت پر سر د سدوزو او محمدزو سردارانو داخلي جنګونو او په تېره بیا د انګریزانو دوو تجاوزونو (۱۸۳۹ او ۱۸۷۸) د افغانستان په سیاست کې د مذهبي جناح او ملایانو د قوي کېدو پروسه را شروع کړه او د هغوی لپاره ئې په سیاسي امورو کې د دایمي حضور لپاره موجه مذهبي دلایل، شرایط، او اسباب برابر کړل.» (مخونه، ۱۶-۱۷)

د کتاب په اول او دوهم فصل کې، لیکواله څو ځایه په متواتره توګه دا وایي چې په ۱۹ قرن کې د افغانستان په سیاست کې د مذهبي جناح او ملایانو د بارز رول اخیستلو یو ستر سبب د(«جهاد) هنګامه وه او د دغه مهم بل اساسي علت دا وو چې د انګریزانو له لومړي اشغال څخه راوروسته د کابل سلطنت د انګریزانو په خوښه او تایید ترلاسه کېدی. البته د سلطنت د ترلاسه کولو لپاره هر مشر له خپل ذاتي مهارته کار اخیستی، خو په نهایت کې د کابل د سلطنت د مشرانو په انتخاب کې د انګریزانو تاید او حمایت ټاکونکی نقش لاره. د کابل د حاکمانو پر خلاف همدې پارونکي سیاسي او مذهبي الزام د کابل حاکمان د دوامداره مذهبي چنلج سره مخامخ کړي ول. پدې زمانه کې، د کابل د پاچاهانو سیاسي مخالفانو تل هغوی د (پرنګي) سره په کولو ژن یا سازش تورنول. د کتاب پدې جالبو فصلونو کې لیکواله کاږي چې د امیر دوست محمد خان او امیر عبدالرحمن خان مخالفان هغوی سمدستي (د پرنګي ګوډاګیان) بلي او د هغوی پر ضد (جهاد) اعلاموي.

د مثال په توګه، د کندهار اکثره خلګ او مذهبي مشران د امیر عبدالرحمن خان مخالف ول. د کندهار مشهورو مذهبي مشرانو د امیر عبدالرحمن خان پر ضد فتوا صادره کړه او هغه ئې «د پرنګي نماینده او کافر» وباله (مخ، ۲۸). او کله چې عبدالرحمن خان کندهار ونیو، هغه شخصا پخپل لاس خپل مخالف مولوي عبدالرحیم کاکړ او نور ووژل، ځکه د افغان انګلیس د دوهم جنګ په جریان کې د کندهار په سیمه کې د میوند د فاتح محمد ایوب خان پلویان زیات ول او څو ځله د هغه لپاره د انګریزانو او امیر عبدالرحمن خان پر خلاف وجنګېدل. دغه راز، د عبدالرحمن خان پر ضد د ملا مشک عالم او نورو افغاني شخیصتونو مخالفت هم سمدستي ملي او جهادي رنګ واخیست.

متن: لکه څنګه چې پروفسور سینځل نوید وایي، چې په ۱۹ قرن کې د انګریزانو دوو حملو د افغانستان د سیاسي برخلیک په ټاکلو کې د مذهبي مشرانو د تبارز لپاره زمینه برابره کړه او د امان الله خان د سقوط یو عمده عامل سو، پدې مقاله کې زما مطلب دا دئ، چې دا ثابته کړم چې د انګریزیانو تر تجاوزونو مخکې د افغانستان په سیاست کې د مذهبي خلګو او ملایانو ونډه خورا کمرنګه وه. د خارجي اشغالګرانو پر ضد د افغان ولس د قیامونو جوړښت او مشرتوب په قومي ارستوکراسي پورې تعلق لاره او عموما ئې ملي داعیه بارزه وه او چندان دیني صبغه ئې نه لرله او نه هم د پخوانیو ښورښونو انګیزه څرګنده دیني توجیه لرله. په مخکنیو سیاسي شورښونو کې په عمومي توګه د خارجیانو پر ضد د قیامونو په لیدرشیپ کې ملایان او دیني شخیصتونه نه راپیدا کېدل، بلکې په همدې تاریخي پاخونونو کې مذهبي مشرانو عموما فرعي او

حایشه وي نقش لوباوه او هیله سمدستي د خارجیانو پر ضد مبارزه «جهاد» نه بلل کېږي.

پدې زمانو کي، په افغانانو کي سیاسي حاکمیت او لیډرشیپ عموما په قومي او نظامي ارستوکراسي پوري تعلق درلودی. په بل عبارت، په ۱۶، ۱۷، او ۱۸ قرنونو کي د افغانانو ټولو مهمو او تاریخي قیامونو ملي رنګ او جامې لرلې. پدې زمانه کي، سیاسي مشرانو عموما ملي او قومي ترمینالوژي کاروله. د پیر روښان، خوشحال خان، میرویس خان، د کندهار او هرات ابدالیان او د احمد شاه بابا په حرکتونو کي همدې سیاسي مشرانو د خارجي اشغالګرانو پر ضد د ملي ازادۍ لپاره ببرغ پورته کړی وو. هغوی «د خارجي اسارت» څخه د خلاصون لپاره د خلګو «ملي احساسات» راپارول نه «دیني» او عموما ئې خپلو مبارزاتو ته د یو ملي ازادي غوښتونکي تحریک رنګ ورکاوه، نه مذهبي رنګ.

دلته به هڅه وکړو، چي د ۱۶، ۱۷، او ۱۸ پیړیو په ملي پاڅونونو کي د ملایانو او مذهبي مشرانو ونډه وګورو او دا به وګورو چي ایا هله هم افغانانو د خارجي اشغالګرانو پر ضد له دیني احساساتو څخه د حربې په توګه استفاده کوله او کنه؟ ایا د خارجي قواوو په شړلو کي د قیامونو لیډرشیپ ملایانو کاوه او که د وخت د قومي ارستوکراسي مشرانو او نظامي قومندانانو؟

تاریخي پس منظر:

احمد شاه بابا (۱۷۴۷ – ۱۷۷۳): که چیري موږ په ۱۹ پیړۍ کي د انګریزانو سره تر مخامخ کېدو څه مخکي په کندهار کي په ۱۸ قرن کي د احمد شاه بابا د انتخاب جرګې (۱۷۴۷) ته توجه وکړو، د شیر سرخ پدې تاریخي جرګې کي اکثریت مشران قومي ارستوکراتان او نظامي قومندانان دي، نه ملایان، نه برداران او نه هم مذهبي مشران. د افغانستان د تحلیلي تاریخ مخکښ مورخ مرحوم میر غلام محمد غبار پخپل مشهور کتاب (احمد شاه بابا افغان) کي د دې تاریخي جرګې غړي د ۲۵ کلن احمد خان سدوزي په شمول داسي رامعرفي کوي: «د نادر افشار په لښکرو کي د افغاني قواوو قومندان نور محمد خان میر افغان علیزی، محبت خان د پوپلزو مشر، موسی خان د اسحق زو مشر، نصر الله خان د نورزو مشر، او حاجي جمال خان د بارکزو مشر.» (مخ، ۵۵). په یادو کسانو کي یو کس هم په تاریخ کي مذهبي شهرت او صلاحیت نه لري، بلکي ګرده یا د خپلو قومونو منل سوي مشران دي او یا هم پوخي مشهور نظامي قومندانان دي. همدا رنګه، د احمد شاه بابا د حکومت اکثره جنرالان، وزیران، والیان، او نور عالي رتبه مامورین مذهبي خلګ نه ول، بلکي پدې وخت کي د دولت مهمې چاري زیاتره غیر مذهبي خلګو سمبالولې.

د تاریخي شواهدو په اساس، د ایران او مغل پر ضد د احمد شاه بابا د استقلال داعیه ملي صبغه لري، نه مذهبي. په بل عبارت، احمد خان د خپل دولت په تاسیس کي پر ملي ترمینالوژۍ باندي تکیه کوي، نه پر مذهبي کلماتو باندي. هغه ادعا کوي چي د فرید او د حمید دور به بیا راژوندی کوي، نه د کوم دیني مشر د حکومت دوره. د هغه تاریخي هیروګان په هند کي د افغانانو پاچاهان دي، نه کوم خاص دیني مشران. البته دا خبره باید دلته یاده کړم چي دا د دې مانا نه لري چي ګواکي احمد شاه بابا دین او یا مذهبي مشرانو ته کومه خاصه توجه نه کوله. نه، هیڅکله نه، بلکي

لکه څنګه چې د افغانستان د تاریخ دقیق او ممتاز مورخ الفسټن پخپل کتاب (د کابل سلطنت) کې لیکي: «هغه د ښو ملایانو او ولیانو زیات احترام کاوه.» هغه نرمه او خوشحاله طبع لرله او د خلګو سره د پلار په شان مهربانه وو (دوهم جلد. مخ ۲۹۹).

غبار په خپل کتاب (احمد شاه بابا افغان) کې لیکي چې احمد خان په اصطلاح «لوکس او تجملي» ژوند نه لاره. پر تخت نه کښېناست او تاج ئې نه په سر کاوه. ژوند ئې د نورو عادي افغانانو سره چندان زیات تفاوت نه لاره. خوراک ئې عادي افغاني ډوډۍ وه (مخ، ۳۳). غبار زیاتوي چې احمد خان په پښتو او فارسي کې «کامل سواد» درلود، او «د شرق د لایقو خلګو په جمله کې حسابېږي» (مخ ۲۶). غبار لیکي چې احمد شاه بابا د سلطنت پر وخت یو «باتجربه» قوماندان وو. زیاتي «سیاسي تجربې» ئې لرلې، او «د افغان په تاریخ اګاه وو.» (مخ ۶۲).

د افغانستان د چارو بل دقیق او پخوانی مبصر ښاغلي ډوپري په خپل کتاب (افغانستان) کې د احمد شاه بابا په باب وایي: هغه په «حکمت» حکومت کاوه او د خپلو وزیرانو او جنرالانو «مشورو» ته ئې غوږ نیوی او تل ئې هڅه کوله چې د حکومت کارونه د «خپل دربار په سلا او مشوره» وکړي. (مخ، ۳۴۰)

په همدې لړ کې په افغانانو کې د احمد شاه بابا محبوبیت او شهرت د هغه د ملي لاسته راوړنو له امله دئ، نه د هغه د دیني لاسته راوړنو په خاطر. د احمد شاه بابا شخصي شجاعت او په جنګونو کې کامیابه لیډرشیپ د هغه جادوګره کریزما په افغانانو کې عامه او ابدي کړې ده. ښاغلی بارت په خپل کتاب (د سوات په پښتنو کې سیاسي لیډرشیپ) کې کاږي چې په افغانانو کې د سیاسي لیډرشیپ د ترلاسه کولو لپاره یو مشر مجبوره دئ، چې په جنګي ډګرونو کې زړورتوب وښیي، دا د مشرتوب د لاسته کولو لپاره یوه ضروري کوالټي ده. (بارت، مخ ۷۴)

د افغانستان د تاریخ بل مشهور لیکوال فیریر پخپل کتاب (د افغانانو تاریخ) کې لیکي: «د شیر سرخ په جرګو کې افغان مشران پدې قانع ول چې د ایرانیانو سره د افغان ملت «یو ځایتوب» او اتحاد «ناممکن» دئ او باید د خپل ملت لپاره خپله «یو مشر او دولت» وټاکي.» (مخ، ۶۸) فیریر د خپل کتاب په بل ځای کې کاږي: د احمد شاه حکومت یو «فدرالي جمهوریت» ته ډېر ورته وو او هغه د دې فدرالي حکومت «مشر وو نه سلطان.» (مخ، ۹۵). فریر لیکي چې احمد خان ۲۵ کلن وو چې پاچا سو او هغه د نورو اسیایي پاچاهانو غوندي شرابي، غمزیي، بې رحمه، قاتل او په نورو بد اخلاقیو باندي ککړ نه وو. احمد شاه حاکمانو ته د خلګو خمېدل او بې حده احترام لغو کړل. فیریر زیاتوي د احمد شاه طبیعت خوشحاله وو. فطرت ئې سخي وو او خلګو په اسانه لیدلای سوای. او د جنګونو غنایم ئې پر خپلو عسکرو باندي په انصاف وېشل. احمد شاه یو عادل پاچا وو او د عدالت په اجراکولو کې بې طرفه وو. (مخ، ۹۳). فیریر کاږي احمد خان تل کوښښ کاوه چې د خپلو خلګو سره په احترام چلن وکړي او د هغوی په مخ کې مغرورانه او متکبرانه سلوک و نه کړي. هغه تل هڅه کوله چې ټولو افغانانو ته یو شاني احترام وکړي، څو د هغوی د ننګ او عزت احساساتو ته صدمه و نه رسېږي. (مخ ۹۵)

لنډه دا چې احمد شاه بابا اصلي هدف (الف) د ایرانیانو له اسارت څخه د خپل ولس ژغورل ول، او (ب) د یو مسئول او جرګیي حکومت تاسیسول ول.

میرویس نیکه (۱۷۱۵ -۱۷۰۹): اکثره مورخین پدې متفق دي چې د ۱۸ پیړۍ په سر کې صفوي دولت په کندهار کې د یو لړ بنیادي سیاسي مخالفتونو او بحرانونو سره مخامخ وو. د صفوي حکومت د کندهار د بحران د رااېسارولو په منظور ګیرګین خان د نوي ګورنر په توګه انتخابوي. باید زیاته کړم چې پدې وخت کې ګیرګین په ازمایشي دوره کې دئ. ځکه ګیرګین یو وخت د ایران حکومت ته یاغي کېږي، مګر په جنګ کې ماتې خوري او د خپلو ګناهونو د تلافي لپاره خپل دین مسیحیت خوشې کوي او د اسلام مقدس دین مني. څرنګه چې ګرګین په ښه تدبیر باندې شهرت درلودی، نو بنا اصفهان فیصله کوي چې د کندهار حاکم ئې مقرره کړي او په اصطلاح د ځان د سپینولو لپاره یو بل چانس هم ورکړي.

غبار لیکي ګرګین کندهار ته د رارسېدو سره سم په زیاتېدونکې توګه د غلجو او درانو اختلاف ته لمن وهل شروع کړه او پدې وخت کې ئې پر غلجي مشرانو باندې زیاته تکیه کوله. (مخ ۳۱۷). په کندهار کې ئې د ابدالیانو د قدرت د ختمولو په غرض د هغوی پر مقتدر ملي مشر دولت خان سدوزي باندې حمله وکړه او هغه ئې په خپل کور کې شهید کړ. ګرګین دغه راز د سدوزو نور مشران ګرشک، فراه، او هرات ته تبعید کړل او ځمکې ئې غصب سوې. یو زیات شمېر ئې په ملتان کې میشته سول. غبار لیکي چې ګرګین په کندهار کې په «شدت او عصبانیت» باندې حکومت کاوه. (مخ ۳۱۶)

ښېنوا صاحب پخپل مشهور اثر (میرویس نیکه) کې د کندهار د تاریخي قیام د آماده ګۍ لپاره د دریو جرګو خبر ورکوي، او د دې جرګو ځیني غړي دا کسان معرفي کوي: د هوتکو د دورې بې ساري جنرال او سپه سالار سیدال خان ناصري، بابو جان بابي، عزیز خان نورزی، ګل خان بابړ، نور خان برېڅ، نصرو خان الکوزی، یونس خان کاکړ او څو تنه نور چې ټول قومي ارستوکراتان او نظامي قومندانان دي، چې چندان مذهبي مشران پکښې نسته. (مخونه، ۹۶-۹۷)

د افغانستان د تاریخ اوسنی امریکایي لیکوال فقید دوپري په خپل کلاسیک کتاب (افغانستان) کې کاږي چې میرویس خان یو «زړه ور عسکر»، یو وطنپال افغان او یو ماهر او نافذ شخصیت وو. هغه د حج په دوران کې له ایرانه په پټه د اصفهان پر ضد فتوا تر لاسه کړه. دوپري لیکي چې میرویس خان په اصفهان کې د صفوي حکومت په فساد او کمزوري باندې ښه پوه سو او د صفوي نظام خوساتوب ئې په مرکز کې شخصا تجربه کړ. دوپري وایي میرویس خان د ځان لپاره د «پاچا» عنوان انتخاب نه کړ، بلکې «د کندهار د وکیل» لقب ئې خوښ کړ. (۳۲۴)

په همدې لړ کې، د میرویس خان همعصره د پېښور د سیمې لیکوال او سیاستوال افضل خان خټک په خپل کتاب (تاریخ مرصع) کې لیکي چې ګرګین او دار و دسته ئې په کندهار کې سخت ظلم کاوه، نو میرویس خان د خپل قام قیادت تر لاسه کړ او ایرانیان ئې وشړل. افضل خان خټک د میرویس خان د فصل په اخر کې کاږي «هغه اوس په قندهار کې ناست او خپل حکومت او سرداري کا. توفیق ئې رفیق شه. ښه ښېتون دئ» (مخ، ۴۰۲).

مطلب مي دا دئ چي د افضل خټک او نورو له اثارو څخه داسي ښکاري چي د میرویس خان نیکه د قیام ژبه او ترمینالوژي مطلقا ملي ګرا او وطني وه. د افضل خان خټک په تعبیر د ښه والي ښه محک پښتونولي ده. د افضل خان خټک پدې بیان کي قامي او نشنلسټو احساساتو پر نورو ټولو مشترکو مذهبي او سیمه ایزو هویتونو باندي څرګنده واکمني کړې ده.

په پورتني نقل قول کي څو کلمې کلیدي اهمیت لري او باید څه توضیح او تشریح سي: اول په کندهار کي «حکومت او سرداري» کوي، دوهم «ښه پښتون» دئ، ځکه د افضل خان خټک په سیاسي یاداښت کي د حکومت کولو خبره ذکر سوې ده او دوهمه دا چي د ښه معیار قومي او ملي دئ، نه مذهبي، ځکه افضل خان خټک خپله هم په یوې سیاسي کورنۍ کي زېږېدلی وو او د خپل قام د مشرتوب سرداري ئې د پلرونو او نیکه ګانو څخه ور پاته سوې وه. (افضل خان خټک د خوشحال خان خټک لمسی دی.)

سید جمال الدین افغان په خپل مشهور کتاب (تتمهٔ البیان في التاریخ الافغان) کي د افغانستان سیاسي تاریخ په کندهار کي د ۱۸ پېړۍ په سر کي د میرویس خان هوتک د ملي حرکت څخه راشروع کوي. هغه کاږي چي افغان یو «عسکري» قوم دئ او د خارجي اشغالګرانو او ظالمانو پر ضد ئې تل قیامونه کړي دي ( مخ، ۱۴). سید جمال الدین افغان دلته د افغانانو مهم ملي شاخصونه (الف) نظامي روحیه او (ب) د خارجیانو سلطه نه منل ښودلي دي. سید جمال الدین افغان لیکي: کله چي میرویس خان کندهار له صفوي قواوو څخه پاک کړ، هغه یوه «قومي جرګه» جوړه کړه. په جرګه کي ودرېدی او جرګه والو ته ئې خپل نطق د «ازادۍ» په ستایلو او د «اسارت» په غندلو داسي آغاز کړ: «که چیري تاسو زما ملا را وتړئ، زما سره متحد او یو موټي سئ، افغانان به له غلامۍ او ذلت څخه وژغورو او پخپل هیواد او بلاد کي به د ازادۍ او حریت بېروغونه ورپوو او د شیعه ایران د اسارت یوغ به له خپلو اوږو څخه لیري وغورځوو.» ( مخ، ۲۱)

موږ ګورو چي د میرویس خان نیکه په وینا کي ټینګار پر ملي ازادي او له ایراني اسارته پر نجات باندي دئ. میرویس خان لدې غلامي څخه د خلاصېدو لپاره خلګ وحدت او همکارۍ ته رابولي. د میرویس خان د دې مهمي وینا مطلق اکثریت کلمات او ترمینالوژي ملي ګرا او غیر مذهبي ده، استدالال ئې قومي او نشنلسټ دئ. په خبرو کي ئې محوري ټکي حریت او ازادۍ ده. په خپل وطن کي د خپلواکۍ د جنډو د جګولو خبري دي، نه د کوم مذهبي حکومت د جوړولو پیغام. پدې لنډو پورتنو څو ټکو کي د میرویس خان نیکه د ضد صفوي تبلیغاتو ژبه ملي ده او داعیه ئې نشنلسټه ده.

د میرویس خان یو بل همعصره پولنډی لیکوال کروسینسکي دئ. کروسینسکي په اصفهان کي په مسیحي تبلیغي کارونو بوخت وو، چي شاه محمود هوتک هغه ښار فتح کړ او صفوي امپراتوري ئې نابوده کړه. څرنګه چي کروسینسکي یو باسواده مذهبي شخص وو، هغه د افغانانو د همدې فتح د سترګو لیدلي حال درج کړي وو او د هغه همدا یاداښتونه په حقیقت کي د هوتکو د تاریخ یوه مهمه او معتبره منبع ده. هغه کاږي چي میرویس خان د جادوګر بیان او ژبي خاوند وو. هغه په ایران کي د خپل قام لپاره یو بې

ساری سفیر وو او د خپل سیاسي درایت، اوچت فکر او مادي منابعو په برکت ئې دایران دربار تسخیر کړ.

کروسیسکي په خپل کتاب کي بل ځای لیکي: میرویس خان نهایت «شتمن» شخص وو (مخ ۵۱). لیکوال بل ځای وایي: میرویس خان په مهمو کارونو کي له افغانانو سره تل «سلا مشورې» کولې (مخ ۶۲). کروسنیسکي ادامه ورکوي او لیکي: افغانانو ته د میرویس خان وروستی مهم وصیت دا وو چي تول باید په «اتفاق» واوسي او دوښمن ته سر «ټیټ» نه کړي او بالاخره خپل قام ته وایي: «په اتفاق کار کوئ، ښایي اصفهان ونیسئ.» (۶۵).

په ۱۸ پیړۍ کي د صفویانو او مغلو پر ضد د افغانانو اکثره مخالفتونو ملي صبغه لرله او ملي مشرانو د حاکمو امپراتورانو پر ضد ملي ترمینالوژي کارول، نه مذهبي. پدې دوره کي، اکثرو ملي مشرانو قومي او اشرافي رهبري لرلې. په تېره بیا د هیواد په غربي برخه کندهار او هرات کي، د صفویانو او مغلو پر ضد د اکثرو افغان مشرانو عقاید، د ژوند تجربې او د سیاسي ذهنیت محیط او ماحول ملي وو. د هغوی مهم آرمانونه د وطن او قام د بچولو پر محور راڅرخېدل. که څه هم هغوی د یوه شیعه صفوي نظام سره مخامخ ول، خو بیا هم هغوی د صفوي حاکمانو پر ضد له مذهب او دین څخه د یوې سیاسي حربې په توګه کار وا نه خیست او مذهبي او سکتوري پروپاګند ئې نه کاوه، بلکي تول تمرکز ئې پر ملي ګرا او نشنلستې محورونو باندي وو. مرحوم غبار لیکي میرویس خان له نژدو څخه لیدل چي ایراني حاکمان ئې له وطنوالو سره «ظلم او تبعیض» کوي، د خپل وطن مالیات ئې د صفوي استبداد په «خزانه» کي راجمع کېږي او په کندهار کي ۲۰ زره مسلح خارجي ایراني عسکر مدام ساتل پر محلي خلګو باندي سخت مادي او رواني فشارونه اچولي ول.

میرویس خان د دغو ظالمانه شرایطو لاندي د کندهار او شا و خوا سیمو خلګ او قومي مشران په داسي سري او مخفي شکل سره منظموي، چي د افغانستان د تاریخ تول مورخین ورته حیران دي. میرویس خان بالاخره خپل ملي قیام کامیابه کوي او په افغانستان کي د صفوي استعمار یو اوږد فصل ختموي. (مخونه: ۳۱۷-۳۱۹)

د هرات مستقل ابدالي حکومت (۱۷۱۷): مرحوم غبار لیکي د کندهار د تاریخي پاڅون (۱۷۰۹) په جریان کي عبدالله خان سدوزي د میرویس خان هوتک سره د صفوي استبداد د ختمولو په مقصد پوره همکاري وکړه، څو په نتیجه کي په کندهار کي د میرویس خان په قیادت یو ملي او مستقل حکومت تاسیس سو. مګر کله چي میرویس نیکه وفات سو، عبدالله خان سدوزي هرات ته حرکت وکړ، هغه غوښتل چي په هرات کي هم د «استقلال او ازادۍ بیرغ» پورته کړي. همدا وجه وه چي عبدالله خان له کندهار څخه زیات شمېر مشران او خلګ د خپل کاروان ملګري کړل، څرنګه چي پدې وخت کي هرات د صفوي حکومت تر ولکې لاندي وو، د هرات والي عباس قلي سمدستي عبدالله خان بندي کړ. د عباس قلي دا څرګند ظلم د هرات خلګ راپاروي او د ګورنر عباس قلي پر ضد یو عمومي ملي ښاري قیام کوي. په نتیجه کي، مبارز هراتیان ګورنر عباس قلي توقیف او بندي کوي.

د هرات د دې عمومي ښاري پاڅون په بهیر کې، عبدالله خان سدوزی له محبسه تښتي او په شینډنډ کې د هرات د ازادولو په منظور یو افغان پوځ برابروي او سمدستي بېرته د همدې آزادي بخښونکې قوې په راس کې پر هرات حمله کوي. په هرات کې صفوي حاکمیت ختموي او ټول هرات ازادوي (۱۷۱۷). غبار لیکي کله چې په هرات کې د ابدالیانو ملي حکومت تاسیس سو، د هرات خلګو او قومي مشرانو په یوې «لویې جرګې» کې عبدالله خان سدوزی خپل رئیس وټاکی. (مخونه، ۳۳۸-۳۴۸)

سید جمال الدین افغان په خپل کتاب (د افغانستان تاریخ) کې په هرات کې د ابدالي حکومت د تاسیسېدو پروسه په خورا شوق او ذوق بیانوي او پدې جنګونو کې د افغانانو رزمي او حربي مهارتونه په ځرګند ملي او افغاني لحن سره یادوي او ضمنا د افغانانو د مبارزاتو حمایت کوي او د خپل ملاتړ لپاره زیاتره ملي او قومي ترمینالوژي کاروي. د ایرانیانو په مقابل کې د افغانانو د مبارزاتو په حمایت کې د سید جمال الدین افغان لحن او کلمات دونه بارز او محسوس دي، چې د لیکوال د قلبي تړاو مسله بېخي روښانه کوي. سید جمال الدین افغان په اخر کې وایي: «لکه څنګه چې غلجیانو کندهار د ایرانیانو له «اسارته» وژغوری، هغسې د هرات ابدالیانو هم هرات د ایرانیانو له «سلطې» څخه وژغوری او یو «مستقل» حکومت ئې تاسیس کړ.»(مخ، ۲۵)

په هرات کې د ملي تحریک پدې کلونو کې ایرانیانو څو ځله د ایران د نیولو لپاره په زرهاوو ایراني عسکر رااستوي. د افغانانو د ځپلو او تابع کولو لپاره ئې مهم او مخور ایراني افسران او قومندان انتخابوي او حتی د غربي نظامي کار پوهانو څخه کار اخلي، خو هر کرت د افغانانو بې ساري شجاعت او جنګي تاکتیکونو هغوی ماتوي. پدې دوره کې هرات څو کرته په میاشتو میاشتو د ایراني قواوو لخوا محاصره سوی دئ او له پراخو قحطیو سره مخامخ سوی دئ. محترم عبدالباري جهاني په خپل کتاب (هرات، پښتانه او ستره لوبه) کې لیکي: « کله چې وروسته له ۱۳ میاشتو مقاومت او محاصرې څخه د هرات خلګو فیصله وکړه چې ښار نادر افشار ته تسلیم کړي او خلګ «جوپه جوپه» د نادر افشار کمپ ته د بیعت لپاره ور تلل، «البته ذوالفقار خان او الله یار خان د نادر په کمپ کې د بیعت کولو زغم نه درلود او د شپې په تیارو کې ئې ښار خوشې کړ او د کندهار په لور وخوځېدل.» (مخ، ۱۴۵).

د اتلسمې پېړۍ په سر کې د افغانستان په غرب کې د هراتیانو د همدې ملي مبارزاتو په دوران کې یو مهم ټکی چې اکثره خارجي او داخلي مورخین او لیکوالان ئې یادوي هغه «جرګه» او «دیموکراتیک» وشمه سیاسي نظام دئ. همدا جرګیي او مشورتي نظام دئ، چې په هرات کې د والیانو انتخاب او یا برطرفه کولو سبب ګرځي. د قدرت د انتقال داسې مسالمیت امیزه حادثې چې حتی نن ورځ ئې په افغانستان کې تصور نه سي کېدلای.

الفنستین په خپل بې ساري او دقیق اثر (د کابل سلطنت) کې د هرات د دې وخت حکومت «دیموکراتیک» یادوي (مخ، ۲۸۰). الفنستین بل ځای په خپل همدې عالي کتاب کې د افغانانو حکومت د سکالټلینډ د «جمهوریتونو» سره یو شانې بولي او بل ځای افغانستان د کوچینو «جمهوریتونو» مجموعه

ګڼي (اول جلد. مخ، ۲۳۲). الفنسټن په خپل نفیس کتاب کي د افغانستان لپاره د یو باثباته سیاسي نظام په انتخاب کي دونه مخته ځي او وایي: د افغانستان د حکومت لپاره یو دیموکراتیک نظام مناسب او ګټور دئ (اول جلد.مخ، ۲۳۱).

حبیبي صاحب هم په خپل کتاب (د افغانستان لنډ تاریخ) کي د دې پېر سیاسي نظام د «قومي جرګو» او د «ملي حکومت» دور ګڼي او د «لایق او عادل» حاکمانو او «ولسوالانو» خبري کوي (مخونه، ۳۴۸ – ۳۵۳). د افغانستان د مسایلو بل وتلی مبصر اولیور روی، په خپل مشهور اثر (افغانستان، اسلام او مقاومت) کي وایي، چي د افغانانو په سیاسي جوړښت کي سیاسي مشر عموما د قومي مشرانو په جرګه کي راځي او خلګ یو ډول «قرار داد» ورسره کوي اولیور روی زیاتوي چي په افغانانو کي مشر پدې پوهېدی چي «د یوې ستر جرګې په زور حکومت» کوي او همدې جرګې مشروعیت ورکړی دئ، هغه کاږي «لویه جرګه» د افغانستان د تاسیس سیاسي «اسطوره» ده. (مخ ۱۳)

د پورتني مسلې د لا روښانه کولو لپاره به دلته فقط څو تاریخي مثالونه وړاندي کړم:

کله چي په هرات کي د ذوالفقار خان سدوزي او محمد خان سدوزي تر مینځ سیاسي اختلافات زیاتېږي د هرات جرګه دواړه مشران سلب اعتماد کوي او دواړه له هراته پسي اخلي. لدې څخه را وروسته د هرات جرګه الله یار خان سدوزی له ملتان څخه راغواړي او د هرات د حکومت چاري ورسپاري.

بل وخت د هرات خلګ او حاکمه طبقه عبدالله خان سدوزی له ریاسته برطرفه کوي او پر ځای ئې زمان خان سدوزی ټاکي (غبار: مخونه، ۲۳۸-۳۴۸).

بل کرت د هرات جرګه د هرات د ازادۍ پهلوان الله یار خان سدوزی له قدرته پسي اخلي، مګر وروسته له څه وخته ئې بېرته ورغواړي او د هرات ریس ئې ټاکي. باید زیاته سي چي پدې حوادثو کي د قدرت انتقال عموما سوله ایز او مدني وو.

اول لاس تاریخي اسناد د هرات په ازادولو کي د مذهبي مشرانو فعال نقش نه ثبتوي، حتی د فرعي رول یادئې هم چنداني نه کوي. لکه د میرویس خان او احمد خان په زمانو کي، د ۱۸ قرن په سر کي د هرات د ازادولو په مبارزه کي د افغانانو ترمینالوژي ملي وه. د ملي مشرانو ستر هدف خپل وطن د پردیو له اسارته ژغورل ول او په هرات کي د ایران د صفوي حاکمیت ختمول ول، هغوی پخپلو سیاسي تصمیمونو کي وښودل چي د یو ملي، نیمچه دیموکراتیک او جرګیي نظام تاسیسول ئې عالي هدف وو. پدې دوره کي د هرات سیاسي نظام واقعا جالب اړخونه لري او باید زیات مطالعه او وڅېړل سي.

پدې دوره کي د هرات اکثره مشران په قومي او ملي ارستوکراسي پوري اړه لري. که څه هم پدې زمانه کي ریاست تل په سدوزو پوري اړه لري، خو د نورو اقوامو رئیسانو (د مثال په توګه عبدالغني خان الکوزي) هم قوي نقش لوبوی.

نور بیا...

محمدابراهیم سپېڅلی

# په څېړنه کې د (سیمه ییز مېتود) لیکوال

د یوې ښایستې ماڼۍ لیدل، په هغه کې ناسته ولاړه، قدم وهل، هستوګنه او بالاخره له ټولو اسانتیاوو څخه ئې خوند اخیستل د انسان پر ارواح ښه اغیز کوي او زړه ئې غواړي، چې د ډېر وخت لپاره پکښې پاته سي، خو که چیري د دې ښایسته ماڼۍ هغه عکسونه وکتل سي، چې د لومړي ځل لپاره پر دغه ځای هیڅ ودانۍ نه وه یاهم زړه ودانۍ موجوده وه او بیائې د ټاکل سوي نقشې له مخې ونړول سوه او د ماڼۍ د احاطوي دېوال لپاره مځکه وکښندل سوه او تر ځانګړو لارښووونو لاندې له سیخانو ډک جالونه او د کلکوالي په موخه د دېوالونو په بنسټ کې لویې ډبرې په سیمنټو کې ونیولې، نو د چا زړه ته نه لویږي، چې دا ښکلې ودانۍ دې هغه خړه شاړه مځکه وي، ځکه دغه جوړه سوې ماڼۍ په خپله نه ده رغول سوې، بلکې د دې په جوړلو کې په لسهاوو بېلا بېلو کارګرانو پر له پسې څو کلونه خولې توی او د ماڼۍ د څښتن د لاس په تناکو ګټلې پیسې ئې مصرف کړې او بیا دغه ښایسته ماڼۍ تر دې حالته رارسېدلې ده، چې اوس ئې په لیدولو سترګې نه مړیږي.

همدغسې د یوې موضوع په اړه له خپل ځانه خبرې یا له ملګرو اوریدلې کیسې د کاغذ پر مخ لیکل اسانه کار دئ، مګر د یوې موضوع تل ته ورتګ همدومره ستړیا، کار او خولې تویول غواړي، ځکه په ادبیاتو کې څېړنه یو ډېر ګران، له کړاوه ډک او د هر مبتدي لیکوال کار نه دئ.

محمد ولي زلمی نه یوازې په کندهار، بلکې د ټول هیواد په سطحه هغه پېژندل سوی لیکوال دی، چې په لیکوالۍ کې ئې د (څېړنې) سخت کار ته اوږه ورکړې او زیات تیاره کونجونه ئې روښانه کړي دي.

وتلي لیکوال، ژباړن، تاریخپوه او ورځپانه لیکوونکی محمد ولي ځلمی د کندهار پوهنتون د پښتو ادبیاتو استاد پوهنیار مطیع الله روهیال هم د خدای بخښلي محمد ولي ځلمي د علمي، ادبي او ژورنالیستیکي کارونو د ستاینې په لړ کې همدغه خبره کوي او وایي، محمد ولي ځلمي پر سیاسي، کلتوري، تاریخي، ادبي، جغرافیایي، فولکلور او نورو اړخونو کتابونه لیکلي دي، خو په ځانګړي ډول ئې د تاریخي جغرافیې لیکنې ډېر ارزښت لري او په دې اړه ئې ډېر کار کړی دئ.

ښاغلی روهیال وایي د مرحوم ځلمي یادې څېړنیزې هڅې د نورو لیکوالانو لپاره ښه ماخذونه او د باوروړ اسناد دي.

«زلمي صاحب لـه تاندي ځواني، څخه پـه ليکلو پيـل کـړی وو او د ليکلـو اړخ ئـې د پښـتني تـاريخ، د پښـتني سـيمي او د پښـتنو د دود او دسـتور پـه بـاب ليکني کړي دي، د ده ليکني په افغاني تاريخ کي بيا په مشخص ډول د تاريخي جغرافيې په اړخ کـي خـورا ډېر ارزښت لـري، ځکه ده د افغانسـتان د بېلابېلو ولايـاتو تاريخي جغرافيه لېکلې دي، بل زلمي صاحب مرحوم په خپل ژوند کي د دغه تـاريخي جغرافيې ترڅنګ د ژورنالېزم په ډګر کي خورا ډېر با اهميتـه کارونـه کـړي دي، د طلوع افغان او اصلاح جريدې او هلمند جرېدې مسؤل مـدير پاتـه سـوی دئ او پـه کـندهار کـي ئـې د کندهار مجلې تاسيس کړی دئ.»

په کندهار پوهنتون کي د پاچا خان څېړنيز مرکز مسؤل څېړنـدوی انجنير شيرشـاه رشـاد هـم وايـي، د محمد ولي ځلمـي د (کنـدهار) پـه نامـه د ليکـل سـوي کتـاب ترڅنـګ د غزنـي، کابـل، لـوګر، پکتيـا، ننګرهار او کابـل د جغرافيـوي اثـارو لـه ليکلـو او چـاپ څخه داسي ښکاري، چي ليوالتيا ئې په دې برخـه کـي زياته وه.

د استاد رشاد په قول، په يادو اثارو کي ئـې يـوازې د سيمو جغرافيه نه ده بيان کړې، بلکي د هغو سيمو پر کلتور او تاريخ ئې هم ژوري څېړني کړي دي.

نوموړی د محمد ولي ځلمي د څېړنو بريـاليتوب ساحوي مېتود او اسانه ژبه ګڼي.

ښـاغلي شيرشـاه رشـاد زيـاتوي، خـدای بخښـلي محمد ولي ځلمي تل هڅه کوله، چي له دربارونو ليري د خلکو لپـاره ليکنـي وکـړي او همداسـبب وو، چي پـه رسمي غونډو کي لږ ليدل کېدی.

«په دې خاطر چي دی په ساحه کـي وو نـو ده ډېر کوښـښ کـاوه چـي هغـه هرڅـه مـواد چـي وو، هغـه لـه ساحې څخـه د عملـي کـار او خپلو څېړنو لپـاره راټول کړي، د کندهار کتاب، د کندهار د مشاهيرو کتـاب، د غزنـي تـاريخ او جغرافيـه او د کابـل او کنـدهار د زړو مساجدو په اړه معلومات راټولول، دا تقريباً د ساحوي کار نتيجه وه.»

د کنـدهار پوهنتـون مخکنـی رييس او د پښـتو ادبيـاتو اسـتاد حيـات الله رفيقـي هـم د پېژنـدل سـوي قلمـوال محمـد ولـي ځلمي په اړه وايي، دغـه علمـي انسـان پـر خلکـو بـاور درلـود او پرهمـدې بنسـټ ئـې غوښتل، چي د دربارونو پرځای د خلکو پـه زړونـو کـې ژوند وکړي.

استاد رفيقي وايي، ښه يې په ياد دي، چي يوه ورځ مرحوم ځلمي ته د يوې دولتـي ناسـتي او بلنـي يادونـه وکړه، چي استاد محمـد ولـي ځلمـي پـه تونـده لهجـه وويل «ما پر دربارونو مه ګرځوه!!»

«يوځو کله ترمخه همدلته (کندهار د تاريخ په اوږدو کي) مهم سيمينار ته زلمي صاحب هم د نورو مخورو ليکوالانـو سره راغلی وو.

د کنـدهار د اطلاعـاتو او کلتـور مخکنـی رئـيس اروانښـاد عبدالمجيد بـابی دي خدای وبخښـي هغـه هـم راسره وو، چـي زلمي صاحب ته مي وويل، راځه چي ولاړ سو والي صاحب سره خبري وکو، ده داسي په غوسه وويل چي ما پر دربـارونو بانـدي مه ګرځوئ.

ده داسي منزوي طبعه درلودل، درسته ورځ ډېر زيار کښـه وو او خپله ليکوالي او نويسنده ګي يې کول.

دی ډېر نېک او ښه سړی وو خدای دې وبخښي.»

مرحوم محمد ولي ځلمی د عمر د زیاتوالی له امله له تېرو کلنو راهیسې د ناروغۍ پر بستر پروت وو، خو بیایې هم په دې اوږده ناروغۍ کې قلم له ګوتو نه لوید.

ویل کیږي، چې په سخته ناروغۍ کې به ئې هم یادښتونه لیکل او ځیني ناچاپ اثار او یادښتونه ئې د کورنۍ غړو ته پاته دي.

مرحوم محمد ولي ځلمي په ۸۶ کلنۍ عمر کې زیات وخت له مطبوعاتو سره هم تېر کړی او په دې برخه کې ئې د کندهار مجلې او هلمندي جریدې د تاسیس ترڅنګ د ډېرو کلنو لپاره د کابل مجلې، د طلوع افغان او اصلاح مهمو ورځپاڼو مسؤل مدیر هم پاته سوی، چې د دوی د وخت خپاره سوي مضامین تر اوسنیو انټرنیټي دورې ډېر قوي بلل کیږي.

زموږ دغه ځېرنیز لیکوال، تاریخپوه، ژباړن او ژورنالیسټ استاد محمد ولي ځلمي تر شلو زیات مغتنم اثار لیکلي، چې (کندهار، د کندهار مشاهیر، د کابل نومیالۍ ورځپاڼې او جریدې، د افغانستان او روسیې روابط، ملي مبارزې، دکابل او کندهار تاریخي مسجدونه، مجاهد افغان او نور...) ئې مشهور چاپ سوي اثار دي.

د هیواد دغه ستره هستي تېر کال په خپل پلرني ټاټوبي کندهار کې د وروستۍ ناروغۍ له امله وفات او کندهار پوهنتون ته څېرمه د (مشاهیرو) په هدیره کې خاورو ته وسپارل سو.

په دې وروستیو کې ئې د کندهار د اطلاعات او کلتور ریاست لخوا مقبره هم په اساسي ډول ورغول سوه.

ژباړه: عثمان برکت

## غوره ویناوي

- د شتمن کېدو لپاره مهمه نه ده، چې څوک دې پیسې یا زر ولري، بلکې مهمه داده، چې د خپل رب لاسنیوي ته معتقد و اوسو.
- احترام؛ هغه څه چې په ورکولو سره راکول کیږي.
- د یو انسان نرمي د هغه د کمزورتیا په معنا نه دئ، په یاد ولرئ، تر اوبو هیڅ شی هم نرم نه دی لاکن قوت ئې د غره لویې ډبرې ماتولای سي.
- مور مې هر څه راوښودل خو صرف دا نه؛ چې څنګه پرته له هغې ژوند وکړم.
- احمق کسان هغه دي، چې په حقیقت پوهېږي، حقیقت ویني مګر بیا هم په دروغو باور کوي.
- موقتي خلګ تل دایمي درسونه ورکوي.
- مهمه داده چې صبر وکړو؛ ځکه د هر څه لپاره خپل وخت سته.
- د یوه ریښتیني ملګري درلودل؛ لویه تحفه ده.
- هیڅکله په تېرو پسې ارمان مه کوی؛ حقیقت کې هغه د ژوند درس دئ د ژوند سزا نه ده.
- ژوند ډېر لنډ دئ؛ نو له احمقو کسانو سره دلایل مه وایاست.
- زما غلطۍ باید ماته وویل سي نه نورو ته، ځکه نور زما غلطۍ نسي اصلاح کولای. زه خپلې غلطۍ پخپله اصلاح کولای سم.

نثاراحمد آریا

# د ناول کرکټر کښنه

(لومړۍ برخه)

کرکټر کښنه په نړۍ وال ادب کې د داستاني ادب د یو مهم اړخ په توګه تر اوږدو بحثونو لاندې نیول سوې ده. د داستاني ادب دا عنصر په روایاتو، اسطورو، نکلونو، لنډو شفاهي کیسو او ډېرو نورو پخوانیو داستاني ژانرونو کې رول لرلی دئ او د دې ژانرونو په وجود کې ئې ځان ته ځای ثبت کړی دئ.

دا چې په داستاني ادبیاتو کې د کرکټر کښنې ارزښت ورځ تر بلې زیات سوی دئ، نو له دې امله د معاصر داستاني ادب او په ځانګړې توګه د ناول د کره کتونکو او لیکوالو د تودو بحثونو ور ګرځېدلی دئ. په دې لیکنه کې په معاصره او نوې ناول لیکنه کې د کرکټر کښنې پر ارزښت او ځینو نورو اړخونو رغېږو.

په نوې ناول لیکنه کې د کرکټر کښنې رول: په نوې ناول لیکنه کې کرکټر کښنې ته د ناول د جوړښت تر ټولو اړخونو ډېره پاملرنه کیږي. په اوسني وخت کې کرکټر د ناول بنسټ جوړوي او په کومو ناولونو کې چې کرکټر کښنې ته خاصه پاملرنه سوې وي، نو د کره کتونکو د بحث ور ګرځي.

په اوسمهال کې په نړۍ واله کچه ځینو مشهورو ناول لیکونکو داسي ناولونو ته هم مخه کړې ده، چې د کیسې او پلاټ درک ئې پیکه او یا بېخي نسته. په دې ناولونو کې د لیکوالو پاملرنه یوازې او یوازې د کرکټرونو سایکالوجیک تحلیل ته وقف سوې ده. له دې څخه دا څرګندېږي، چې په نوې ناول لیکنه کې کرکټر کښنې ته تر هر څه ترجیح ورکول سوې ده.

اردو ژبې لیکوال په نوې ناول لیکنه کې د کرکټر کښنې د ارزښت په اړه لیکي: "د تمدن له پرمختګ سره په پر له پسې ډول کرکټر (د ناول) پر پېښو برتري تر لاسه کړې ده. له دې امله په اوس مهال کې د داستاني ادب له پاره تر انسان بله مهمه موضوع نسته. په پخوانیو کیسو کې یوازې پېښو ته پاملرنه کېده، خو په (اوسنیو) ناولونو کې د پاملرنې مرکزي ټکی کرکټر وي." (۵: ۲۲).

په ناول کې د کرکټر کښنې پورتني ارزښت ته پام سره مخکې له دې چې پر دې بحث په مفصل ډول ورغېږو او د ناول د دې عنصر پر بېلابېلو اړخونو

روښا واچوو، ښه دا ده، چي دا بحث د کرکټر له تعریف او د نومونې له مخه ئې له ډولونو څخه پیل کوو.

د کرکټر تعریف او ډولونه: "کرکټر په لغت کي د یو شخص ځانگړي خوی، ذات او خصلت ته وایي او په عامه معنا د هغو ځانگړنو له مجموعې څخه عبارت دئ، چي د بېلا بېلو ټولنیزو شرایطو له امله د یو انسان د غرایزو او پټو تمایلاتو نتیجه وي.

په ادبیاتو کي د کرکټر له کلمې څخه مفهوم هغه خلق سوی فرد دئ، چي د یو حقیقي انسان په شان له خصوصیاتو څخه برخمن دئ او له همدې خصوصیاتو سره په داستاني ژانر کي را ځرگندېږي." (۲: ۳۰۱).

د شخصیت له مخي د کرکټرونو نوموني: د ناول کرکټرونه له بېلابېلو اړخونو څخه مختلفي نوموني لري. له دې ډولونو څخه ئې یو ډول د شخصیت له مخي نومونه ده. دا نومونه که څه هم د کرکټر کښني له اصلي بحث سره ډېر سر نه خوري، خو دا چي پر یو ناول د کره کتني پر وخت له دې نومونو څخه استفاده د کار د وضاحت او اسانۍ سبب گرځي، نو ئې دلته راوړل بې گټي نه گڼم. له دې نومونو څخه ځیني مهمي یې په لاندي ډول دي.

مرکزي کرکټر (Protagonist): مرکزي کرکټر "د ناول لومړی شخص دئ. دا کرکټر ځیني وختونه اتل (hero) کرکټر هم بلل کیږي. مرکزي کرکټر که ښه وي، که بد همېشه له خپل مخالف لوري سره په لانجه اخته وي." (۳: ۴۱).

په بله وینا مرکزي کرکټر هغه څوک دئ، چي د ناول کیسه وربانديي را گرځي. دی هغه څوک دئ، چي په ناول کي تر ټولو ډېر ځرگندېږي. د ده د دې مقام له امله لوستونکي غواړي، چي د هغه په اړه تر نورو ټولو کرکټرونو ډېر وپوهېږي.

که څه هم په عمومي ډول هر ناول یوازي یو مرکزي کرکټر لري، خو دا هم ممکنه ده، چي یو ناول د یوه پر ځای دوه یا څو مرکزي کرکټرونه ولري. په پښتو ژبه کي د نصیر احمد احمدي ناول (یوه خبره درته وکم؟) د دوو مرکزي کرکټرونو درلودونکو په لیست کي شمېرلای سو.

متخاصم کرکټر (Antagonist): دا د ناول یا بل داستاني ژانر "هغه کرکټر یا کرکټرونه دي، چي د مرکزي کرکټر ضد او مخالف وي. دا کرکټرونه که ښه وي، که بد د لوستونکو د همدردۍ او هم حسۍ وړ نه وي." (۳: ۴۱).

د متخاصم یا ضد کرکټر لویه ځانگړنه دا ده، چي اکثریت مهال د مرکزي کرکټر د ارمانونو او هدفونو خنډ وي. البته دلته دا خبره هم د یادوني وړ ده، چي متخاصم کرکټر یا کرکټرونه همېشه بد نه وي، بلکي کېدای سي، ځیني وختونه ډېر په زړه پوري او زړه سواند هم وي.

سمبولیک کرکټر (Symbolic Character): "سمبولیک کرکټر هغه دئ، چي د یو نوي رامنځ ته کېدونکي کلتوري، ټولنیز او یا سیاسي تمایل له پاره د سمبول په توگه کار وکړي او یا د یو انقلاب د اعلان په توگه رامنځ ته سي." (۳: ۴۱).

نمونه کرکټر (Type Character): "نمونه کرکټر هغه دئ، چي د یوې طبقې استازیتوب یا ترجماني وکړي. د بېلگې په ډول د مزدوري، سرمایه داري، محکوالي او یا داسي نورو طبقو د ځانگړو نظریاتو، خصوصیاتو او د هغو د ارزښتونو پلوی وي او کله – کله د همدې طبقو

په اړه د لیکوال د نظریاتو وړاندي کونکی وي." (۳: ۴۱).

د جوړښت له مخي د کرکټر ډولونه: ځېړونکو د جوړښت له مخي کرکټرونه پر ساده (Flat) او پېچلو (Round) وېشلي دي. ساده او پېچلي کرکټرونه د خپلو جلا – جلا خصوصیاتو له امله پر لوستونکو او د ناول پر کیفیت مختلف تاثرات لري.

ساده کرکټر (Flat Character): ځینو څېړونکو ساده کرکټرونو ته د ولاړ او جامد اصطلاح هم کار کړې ده. "جامد کردارونه هغه دي، چي له پیل څخه تر پای پوري پر یو حال ولاړ وي او د وخت د هغوی پر کردار څه اغېزه نه پرېوځي. دغه ډول کردارونه د کومیډي او مزاحیه (خندوونکو) کردارونو له پاره ښه دي." (۴: ۱۲۸).

د ساده کرکټر په اړه یو بل خای لولو: "په نونسمه پېړۍ کي ساده کرکټرونه طنزیه (کرکټرونه) بلل کېدل، خواوس مهال دا کرکټرونه مثالي یا د کرکټرونو مسخه سوې بڼه ګڼل کېږي. د دې ډول کرکټرونو اصلي بڼه د یوه خیال یا یوه صفت پر بنسټ ولاړه وي" (۵: ۴۹).

په پورتنیو تعریفونو کي درې خبري د یادوني وړ دي: یوه دا چي ساده کرکټرونه نه بدلېدونکي وي، دوهمه دا چي دا ډول کرکټرونه د طنزیه رولونو له پاره ښه وي او دریمه دا چي دې ډول ته د کرکټرونو مسخه سوې بڼه ویل کېږي.

د لومړۍ خبري تفسیر ساده دئ. دلته مطلب دا دئ، چي د دې ډول کرکټرونو شخصیت په یوه جمله کي افاده کېدای سي. د بېلګي په ډول کله چي لوستونکی یو ناول مطالعه کړي، نو د هغه د یو ساده کرکټر شخصیت خپل ملګري ته داسي ور وپېژني (احمد خپل قومندان ته ژمن وو) یعني هغه په هر حال کي د خپل قومندان تر څنګ ولاړ وو او دې ته ئې نه کتل، چي د ښو پر وخت ئې ملګرتیا وکړي او د بدو پر وخت ئې پرېږدي او یا ئې په وړاندي ودرېږي.

ساده کرکټرونه ښایي په دې خاطر د طنزیه رولونو له پاره مناسب ګڼل کېږي، چي طنزیه کرکټرونه ډېر مهال میخانیکي وي او ساده کرکټرونه هم اکثریت مهال د مصنوعیت له خطر سره مخ وي. همدا رنګه دې ډول کرکټرونو ته ښایي په دې خاطر د کرکټر مسخه سوې بڼه وایي، چي د طبعي انسان له اوصافو لږ و ډېر لیري وي.

داې. ایم فارسټر په نظر سنجیده او تراژیدیک ساده کرکټرونه ځکه د لوستونکو له پاره په زړه پوري نه وي، چي دوی هر ځل هماغه د خلص، انسان دوستي او... ناره وهي. په دې ډول لوستونکي د ساده کرکټرونو له مستقل مزاجۍ څخه خسته کېږي او هدف ته د هغه د رسېدو تلوسه ئې له منځه ځي.

ساده کرکټرونه د خپلو ځانګړنو له امله ښېګني او بد ګني هم لري. د دوی یو بل خصوصیت او د دې خصوصیت ګټي او تاوانونه په دې ډول ښوول کېږي: "داسي کرکټرونه د یو خاص خیال تر پوښښ لاندي جوړېږي. یعني د دې ډول (کرکټرونو) د تخلیق پر وخت دې ته ډېره پاملرنه کېږي، چي یو ځانګړی صفت ولري. په عمومي ډول (د کرکټر) دا صفت له دلچسپۍ خالي نه وي، خو دا چي په عامه توګه په ژوند کي انسان یوازي له یوه صفته برخمن کېدای نه سي، نو دا ډول کرکټرونه عموماً یو څه له

حقیقته لیري کیږي. له دې امله دې ډول کرکټر ته نیمګړی کرکټر هم ویل کیږي.

البته پر دې ډول کرکټر نیوکه کول، یو څه بې ځایه معلومېږي، ځکه اکثرو لویو ناول لیکونکو (دا ډول کرکټرونه) په ډېر ښه ډول وړاندې کړي دي. پر لوستونکو د دې ډول کرکټرونو اغېز ځکه ښه وي، چې په اسانه پېژندل کیږي او په حافظه کې ئې پاته کیږي. په دې ډول ئې د یو هنري اثر په شان اغېز دایمي وي. په عمومي توګه دا هم ویل کېدای سي، چې هغه ساده کرکټر بریالی وي، چې طنزیه وي." (۵: ۲۹).

همدا رنګه د ساده کرکټر ګټې داسې هم ښوول کیږي: "د ساده کرکټرونو یوه مهمه ګټه دا ده، چې کله د لوستونکي په وړاندې راځي، نو په اسانه ئې پېژني. دا شناخت د لوستونکي د ظاهري سترګو پر ځای د هغه د احساساتو سترګې کوي." (۵: ۵۱) دلته د احساساتو له سترګو څخه مطلب دا دئ، چې کله لوستونکی په ناول کې له دې کرکټر سره مخامخ سي، نو د خپلو احساساتو په وسیله هغه پېژني، چې د څنګه خوی او خصلت مالک دئ او څه ډول حرکت به کوي. دا ډول کرکټرونه عموماً په ټولنه کې د ځینو مشهورو صفتونو لکه مېړانې، چاپلوسی، ژمنتوب، مکارتوب او... څخه برخمن وي.

"د ساده کرکټرونو دوهم ګټور اړخ دا دئ، چې هغه د لوستونکي په ذهن کې تر ډېره پاته کیږي. دا کرکټر ځکه د ده په ذهن کې د نه بدلېدونکي کرکټر په توګه محفوظ پاته کیږي، ځکه حالات (پر نوموړي) هیڅ اغېز نه کوي او په ده کې هیڅ تغیر نه راولي" (۵: ۵۱).

اې. ایم فارسټر په دې نظر دئ، چې دا ډول کرکټرونه که څه هم میخانیکي ښکاري، خو ځینو سترو نړۍ والو لیکوالو لکه چارلیز ډکنز او ایچ. جې ویلز د حرکت او احساساتو په ذریعه ساه ورکړې ده او په خپلو تجربه کارو ګوتو ئې ژوندي کړي دي. یعني که یو لیکوال غواړي، چې د خپل ناول له پاره ساده کرکټر انتخاب کړي، نو دا کومه نیمګړتیا نه ده، خو په دې شرط چې دونده ئې ژوندی کړي، چې د دوی یو رنګوالی د حرکت او احساساتو په زور له میخانیکیت څخه وژغورل سي.

د پښتو ناولونو اکثریت کرکټرونه ساده دي. همدا لامل دئ، چې ډېر کله د پښتو ناولونو پر کرکټرونو د مصنوعیت نیوکې کیږي. په دې برخه کې یو مثال د نصیر احمد احمدي د ناول (یوه خبره درته وکړم؟) د مرکزي کرکټر ورکولای سو. د دې ناول مرکزي کرکټر ته ځکه ساده کرکټر ویلای سو، چې یوازې په یوه جمله (یعنې ډېر وفادار او نېک انسان دئ) کې ئې بیانولای سو. پر دې کرکټر باندې لیکوال د پښتنو د ټولنیزو قیوداتو سیوری غوړولی دئ، ځکه نو سره له دې چې څو شپې له یوې بېګانه پېغلې سره پاته کیږي، خو بیا هم فرشته وي. د دې کرکټر د اخلاقي صفت او اخلاقي مستقل مزاجۍ په اړه ډېرې پوښتنې پیدا کېدلای سي.

پېچلی کرکټر (Round Character): ځینو څېړونکو دې ډول کرکټر ته د پرمختللي، بشپړ او ارتقایي کرکټر اصطلاحوې هم کار کړې دي. "پرمختلونکي یا ارتقایي کردارونه هغه دي، چې د وخت په تېرېدو او د حالاتو په بدلېدو سره په هغوی کې بدلون راځي. یا په بله وینا د ژوند تجربې د دوی په فکر او خیالونو کې لږ و ډېر

بدلون راولي او کله، کله خو داسي هم کيږي، چي يو کردار د ناول په شروع کي يو شان وي، خو په پای کي بېخي بدل سوی وي. "(۵: ۱۲۸).

همدا رنګه د پېچلي کرکټر په اړه دا تعریف هم راوړل کيږي: " بشپړ (پېچلی) هغه کرکټر ته ويل کيږي، چي هم ګڼ انساني خصوصیات ولري او هم ځيني فردي ځانګړني. "(۶: ۲۹).

په دې تعریف کي دا يادونه د توضیح وړ ده، چي هم ګڼ انساني خصوصیات ولري او هم ځینې فردي ځانګړني. د پېچلي کرکټر ګڼ خصوصیات هغه انساني ماډل ته نژدې کوي او فردي ځانګړني ئې هغه غوښتنه ده، چي د ناول له کرکټر څخه کيږي. معنٰی دا چي د ناول کرکټرونه، نه يوازي داچي د ټولني د يو فرد انځور وړاندي کړي، بلکي ځيني داسي فردي ځانګړني هم ولري، چي د عام ژوند په کرکټرونو کي نه تر سترګو کيږي. د ناول د کرکټر همدا ټکی د لوستونکو د استقبال وړ ګرځي.

د پېچلي کرکټر د پېژندني په اړه دا نظر هم د يادوني وړ دئ: "د پېچلي کرکټر د پېژندني له پاره دا معيار هم تاکلای سو، چي هغه په موثره توګه (د لوستونکي) د حيرانولو وړتيا لري، که نه؟ که چيري هغه هيڅکله د حيرانتيا او تعجب سبب نه کيږي، نو دا ساده کرکټر دئ. "(۶: ٦١).

يو کرکټر هغه مهال لوستونکی په حيرت کي اچولای سي، کله چي د لوستونکي د فکر او خيال برعکس عمل وکړي او يا يو داسي فعل تر سره کړي، چي لوستونکی تر اوسه ورسره مخامخ سوی نه وي.

د ساده او پېچلو کرکټرونو په اړه د پورتنيو څرګندونو پر بنسټ دا ويلای سو، چي ځوان ليکوال که د خپلو ناولونو له پاره د ساده کرکټرونو پر ځای پېچلي کرکټرونه انتخاب کړي، نو د برياليتوب چانس به ئې ډېر وي، ځکه ساده کرکټرونه له مخانيکيت څخه راايستل ښايي د پېچلي کرکټرونو د وړاندي کولو په پرتله ډېري پخې تجربې ته اړتيا ولري.

په پښتو ناولونو کي د پېچلو کرکټرونو څرک تت دئ. ښايي د دې يو علت دا وي، چي زموږ ليکوالو لا د خپلو ناولونو کرکټرونو ته په هغه اندازه پاملرنه کړې نه ده، چي بايد کړې يې وای. په پښتو ناولونو کي د پېچلو کرکټرونو ښه مثال د مرحوم پروفيسر راز محمد راز د ناول (عاشو لمر او باران اوري) د مرکزي کرکټر (عاشو) او ځينو نورو فرعي کرکټرونو ورکولای سو.

د دې ناول د مرکزي کرکټر او ځيني نورو فرعي کرکټرونو شخصيتونه په يوه جمله کي د تشريح وړ نه دي، ځکه کله ظالم وي کله مظلوم، کله شيطان وي کله فرشته، کله ثواب کوي کله ګناه، کله فرمانبرداره وي کله ياغي....

پېچلي کرکټر کښني اوسمهال په نړۍ واله کچه د سترو ليکوالو پام ځان ته اړولی دئ. دوی هڅه کوي، چي خپل کرکټرونه په تدريجي ډول د تکامل پړاو ته ورسوي او ورو – ورو ئې شخصيت څرګند کړي.

د انساني کرکټر د جوړښت عناصر: په مجموع کي د هر حيوان (چي انسان هم په کښي شامل دئ) شخصيت له درو عناصرو (وراثت، زده کړه او محيط) څخه سرچينه اخلي. همدا درې عناصر دي، چي د يو حيوان شخصيت د جوړښت او رامنځ ته کېدو فيض ورڅخه اخلي. که څه هم د حيوان غريزې، تمايلات، احساسات له انسان سره توپير لري، خو بيائې هم د

شخصيت د تشکيل عمده عناصر همدا دي. دا چې په ناول ليکنه کې حيواني کرکټرونه لږ رول لري، نو له دې امله په دې برخه کې يوازې د انساني کرکټر پر تشکيل لنډ بحث کوو.

کله چې يو ليکوال د خپل اثر له پاره انساني کرکټر تشکيلوي، نو هغه بايد په دې پوه وي، چې د انسان د شخصيت د تشکيل سرچيني څه دي؟ په بله وينا هغه سرچيني څه دي، چې د انسان شخصيت د جوړېدو الهام ورڅخه اخلي؟ اروا پوهانو دا عناصر درې ښوولي دي: "وراثت، ښوونه او روزنه او چاپېريال.

په مجموعي ډول انساني طبيعت له هغو نژادي غرايزو، حسي کيفياتو، ذهني جريانونو او تمايلاتو څخه عبارت دئ، چې په انسانانو کې عموميت لري. د دې تعريف پر بنسټ ويلای سو، چې وراثت د انساني طبيعت له هغې اساسي سرچينې، ځينو فطري ځانګړنو او جريانو څخه عبارت دئ، چې له ښوونې او روزنې او چاپېريال سره په ګډه د انساني شخصيت په تکامل او پراختيا کې ټاکونکی رول لري.

ښوونه او روزنه او چاپېريال هم د انسان د شخصيت د تشکيل په عمده لاملونو کې شمېرل کېږي، ځکه انسان له عقلي ځواک څخه په استفاده سره د خپلو کړنو او افعالو نظات کوي." (۷: ۲۸۷).

په پورتنيو پراګرافونو کې د کرکټر او په ځانګړي ډول انساني کرکټر د جوړښت پر عناصرو لنډ ورغېدو. د پورتنيو څرګندونو پر بنسټ ويلای سو، چې کله يو ليکوال د خپل ناول له پاره کرکټر تخليقوي، نو بايد د هغه د شخصيت د ټاکنې پر وخت پورتني عناصر په پام کې ونيسي او د همدې عناصرو د کيفيت پر بنسټ د خپل کرکټر شخصيت وټاکي. د

بېلګې په توګه که يو کرکټر بې رحمه وي، نو ښايي د هغه دا ځانګړنه ارثي ريښه هم ولري، يعني د پلار، مور او... څخه دا خاصيت ور پاته وي، همدارنګه د هغه په دې ځانګړنه کې د ده روزنې هم بايد رول لوبولی وي، چې ده ته د يو چا له خوار ورکول سوې وي او يا ده اخيسته ورڅخه کړې وي. د دې تر څنګ د ده کورنۍ، کليوال، ښاري او... چاپېريال هم بايد د ده پر دې ځانګړنه اغېز کړی وي.

د کرکټر د وړاندي کولو لارې: د کرکټر د وړاندي کولو يا معرفي کولو طريقې هم د کرکټر کښښي يو اړخ دئ. که له دغه اړخه سمه او پر ځای ګټه پورته سي، نو ليکوال کرکټر ته ژوند ورکولای سي. ځينو څېړونکو او ليکوالو په دې برخه کې يو شمېر لارې ښوولي دي. دا لارې ځينو څېړونکو دوې ښوولي دي، چې يوه ئې تشريحي او بله ئې ډراماتيکه ده: "په تشريحي بڼه ئې داسي ښيي، چې ليکوال د خپل خوښ کړي يا ټاکلي کردار جذبات، احساسات، افکار او خيالات پخپله بيانوي او ډراماييي ښوونه ئې داسي ده، چې ليکوال کرکټر د هغه د خپلو خبرو اترو (مکالمو)، حرکاتو او سکناتو په وسيله لوستونکي ته ورپېژني." (۴: ۱۲۸)

د پورتنيو دوو طريقو د ځانګړنو په اړه ډاکټر محمد احسن فاروقي او ډاکټر نورالحسن هاشمي داسي نظر لري: "په لومړي ډول کې زموږ (لوستونکو) پاملرنه د ناول ليکونکي د شخصيت خوا ته ځي، خو په دوهم ډول کې ناول ليکونکی له پامه غورځي او کرکټرونه په ژوندۍ بڼه له موږ سره مخامخ کېږي...."

ځيني ناول ليکونکي لومړۍ طريقه ډېره خوښوي او ځيني دوهمه. د نونسمي پېړۍ ليکوالو تر

ډېره لومړۍ طریقې ته ترجیح ورکوله، خو په اوسمهال کې تر ډېره دوهمه طریقه غوره ګڼل کیږي." (۶: ۲۸).

ځینې څېړونکي د کرکټر د وړاندې کولو طریقې درې ښیي:

"۱- مستقیمه وړاندې کونه: په دې طریقه کې لیکوال په خپله ژبه یا د داستان د یو بل کرکټر په خوله خپل کرکټر معرفي کوي.

۲- د مکالمې له لارې: په دې طریقه کې لیکوال خپل کرکټرونه رغوي او په هغه داسې خبرې کوي، چې هغه په خپلو خبرو لوستونکو ته خپل شخصیت ور معرفي کړي.

۳- له ډراماتیکي لارې: په دې طریقه کې لیکوال د خپل داستان کرکټرونو ته حرکت ورکوي او د هغو د افعالو او حرکاتو له لارې لوستونکي د هغه له ځانګړنو سره اشنا کوي. (۸: ۳۰۱).

که په ساده الفاظو ووایو، نو لومړۍ طریقه هغه ده، چې لیکوال یا د داستان یو بل کرکټر په مستقیم ډول خپل کرکټر را پېژني او دا په ډاګه کوي، چې دا ئر کرکټر د کومو صفاتو او ځانګړنو خاوند دئ. د بېلګې په ډول: "بریال لمونځ نه قضا کوي. پخپله وایي، چې کوم وخت لمونځ ونه کړم، هرومرو له یوې نه یوې بدې پېښې سره مخ کیږي. له بانګه تول معاش نه رااخلي، چې هسې نه تول رانه ونه لګیږي. په کړنګ ژمي کې برستن نه اغوندي، د بدن د مقاومت د کمېدو ویره وي ورسره."(۹: ۸۲).

دوهمه طریقه ډیالوګ دئ. په دې طریقه کې کرکټر لوستونکي ته ځان د خپلو خبرو اترو یا ډیالوګ له لارې ور معرفي کوي، یعنې لیکوال خپل کرکټر له نورو کرکټرونو سره د خبرو اترو له لارې لوستونکو ته ور پېژني. بېلګه:

"ښځه: معاش دې واخیست؟

دی: هو، دووس ټول راکړ.

ښځه تسلي ورکوي: خیر دی، هسې به دېم اخیسته. ښه شوه، چې په یو ځلي دې راواخیست، له بیا بیا ورتګ نه خلاص شوې.

دی: زه په دې نه ویرېږم، چې غله به راشي، رانه یو به یې سي. زه چې ټول معاش واخلم، داسې انګېرم، لکه پیسې چې مې له جبه الوځي.

ښځه: خدای به خیر وکړي. ځمله چې دا برستن دربانديې واچوم. چې طبیعت دې راته جوړ نه ښکاري.

دی: نه، نه، برستن نه اغوندم، تېر ژمي مې یوه هفته اغوستې وه، بیا هوار رېېدم، لمر نه بغیر مې ګوزاره نه کېده."(۲۴: ۸۳).

همدارنګه دریمه لار ډراماتیکه یا د کړنو ده، چې لیکوال د کرکټر له فعل او چلند څخه خپل کرکټر لوستونکي ته ور پېژني. مثلاً: "د بانک مامور ترې پوښتنه ونه کړه او ټول معاش ئې ورکړ. د ده رنګ له خپګانه او غوسې ژېړ واووښت. پته ورته ولګېده، چې نن سهار ترې لمونځ قضا شوی. ماښام چې کور ته لاړ، رېږش وو، ښځې چې څومره ورته وویل، برستن یې وانغوسته."(۹: ۸۲).

په دې بحث کې مهمه خبره دا ده، چې په نوي ناول لیکنه کې هڅه کیږي، چې د کرکټرونو د معرفي له پاره له ډراماتیکي او مکالمې له طریقو څخه

کار واخلي. د کرکټرونو د معرفۍ دا طریقې د لوستونکو د دلچسپۍ وړ ګرځي او د ناول د هنریت د زیاتوالي سبب کیږي.

دژوندي کرکټر ځانګړني: په ناول لیکنه کې تر ټولو ستونزمن کار کرکټر کښنه ده. دا کار چې څونده ستونزمن دئ، هغونده ارزښتمن هم دئ. که د یو ناول کرکټر کښنه ژوندۍ وي، نو د ناول د بریالیتوب چانس ډېر وي.

"د کرکټر کښنې لومړی شرط دا دئ، چې کرکټر باید د ژوند وینې او ژوندی تصویر وي. لوستونکو ته باید د داسې دوستانو په څېر ښکاره سي، چې کرکه یا همدردي ورسره وکړي او د ناول تر ختمولو وروسته هم په تصور کې خوند ورځخه واخلي.

غوره کرکټر د ناول پر لوستونکو داسې اغېز کوي، لکه ژوندی انسان. په عمومي ډول د ناول پېښې له یاده وځي، خو عمده کرکټرونه د همېش له پاره په حافظه کې پاته کیږي." (۶:۲۶)

په پورتني اقتباس کې تر ټولو مهم ټکی د کرکټر ژوندیوالي دئ، چې کرکټر باید ژوندی انسان وي. دا دوه توري که څه هم ډېر ساده دي، خو ډېري تشریح او وضاحت ته اړتیا لري، ځکه دلته یوه لویه پوښتنه دا پیدا کیږي، چې کرکټرونه ته ژوند څنګه ورکولای سو؟ د دې پوښتني بشپړ جواب اسانه نه دئ، خو دلته به ئې تر خپله وسه د جواب هڅه وکړو:

په کرکټرونو کې ژوند پیدا کول اسان کار نه دئ. د دې له پاره چې لیکوال دې هدف ته څه ناڅه نژدې سوی وي، نو ده ته په کار ده، چې لومړی خپل کرکټرونه پر مهمو او نامهمو ووېشي. د دې وېش ګټه به دا وي، چې په کرکټر کښنه کې د لیکوال د سخت

کار (کرکټرونو ته ژوند ورکول) ساحه را محدوده کړي. د داستاني ادب ماهرانو د دې وېش له پاره ځیني طریقې وړاندي کړي دي، چې مهمې یې په لاندي ډول دي:

لومړی طریقه: "لومړی طریقه دا ده، چې موږ د ناول کرکټرونه پر لاندي کټګوریو وېشو:

هغه کرکټرونه چې د ناول په پاڼو کې خپله ځان څرګندوي او په لوستونکو باندي خپلي خبرې هم اوري، (یعني) متکلم. دوهم هغه کرکټرونه چې له لوستونکو سره مخامخ کیږي، خو هغه ئې تر پایه خبري نه اوري، (یعني) حاضر. دریم ډول هغه کرکټرونه دي، چې نه د ناول په صحنو کې راڅرګندیږي او نه ئې خبري موجودي وي، بلکې موږ ته هغه یوازي د یو غایب شخص په توګه راپېژندل کیږي." (۱۰ : ۲۰).

دوهمه طریقه: عبدالقادر سروري په خپل کتاب (کردار اور افسانه) کې دوې نوري طریقې هم وړاندي کوي. د دې طریقو لنډیز په دې ډول دئ: په دوهمه طریقه کې لیکوال د ناول کرکټرونه د برخې اخیستني له لحاظه وېشي. په دې وېش کې هغه کرکټرونه چې د ناول له پیل څخه تر پایه موجود وي، تر ټولو مهم دي. بیا نو د نورو کرکټرونو د سهم تناسب ته کتل کیږي، چې کوم کرکټر په ناول کې څونده پاته کیږي. د همدې تناسب له مخې هغوی د مهموالي او نه مهموالي په توګه وېشي.

دریمه طریقه: په دریمه طریقه کې لیکوال کولای سي، چې د خپلو کرکټرونو مهموالی او نه مهموالی د څېرکو پر بنسټ ووېشي. په دې وېش کې لیکوال دې ته ګوري، چې د کوم کرکټر یادونه د ناول

په کوم. کومو څپر کو کي راغلې ده. د هر کرکټر یادونه چي په ډېرو څپرکو کي راغلې وي، هغه به تر نورو ډېر مهم وي. همدارنګه د نورو کرکټرونو د مهموالي تناسب له همدې مخي ټاکلی سي.

کله چي لیکوال ځان ته د خپلو کرکټرونو د مهموالي تناسب معلوم کړ، بیا نو ده ته په کاره ده، چي د همدې تناسب پر بنسټ خپلو ډېرو مهمو کرکټرونو ته ډېره او لږو مهمو کرکټرونو ته لږ پاملرنه وکړي.

د لیکني په پورتنۍ برخه کي د مهمو او نامهمو کرکټرونو د جلا کولو پر طریقو وړغېدو. البته دلته دا خبره هم د یادوني وړ ده، چي شاوخوا (۹۰%) ناولونو کي تر ټولو ډېر مهم مرکزي کرکټر (Protagonist) وي.

ډېر لیکوالان هڅه کوي چي د خپل اثر د مرکزي کرکټر د ښه انځورېدا له پاره له خپل کرکټر څخه کار واخلي. داچي لیکوال ته د خپل ځان خط و خال، احساسات او خوښ و ناخوښ ډېره ښه څرګند وي، نو دی کولای سي، چي له دې طریقې څخه په استفادې سره خپل مرکزي کرکټر ته روح ورکړي. همدارنګه ځیني نور لیکوالان بیا هڅه کوي چي د خپلو ملګرو او دوستانو له کرکټرونو څخه اخذ وکړي او د تخیل په ځواک سره خپل ایډیال کرکټر رامنځ ته کړي.

اوس راځو د اصلي پوښتني جواب ته، چي څنګه یو لیکوال خپلو کرکټرونو ته ژوند ورکولای سي او هغه کوم ټکي یا لاري دي، چي په عملي کولو سره ئې لیکوال خپل کرکټرونه د ژوندي انسانانو په څېر وړاندي کولای سي؟ د دې پوښتني جواب ښایي ډېر اړخونه ولري، خو دلته به ئې موږ پر هغو مهمو اړخونو وړغېږو، چي د ځوانو ناول لیکونکو سره ډېره مرسته کولای سي.

په دې برخه کي لومړی باید لیکوال د خپل کرکټر درې ګوني خواوي روښانه کړي. د کرکټر درې ګوني خواوي په دې ډول دي: ۱- د کرکټر خارجي اړخ ۲- د کرکټر داخلي اړخ ۳- د کرکټر ټولنیز اړخ.

د کرکټر خارجي اړخ یا ظاهري انځورونه: د کرکټر خارجي اړخ "د کرکټر ظاهري بڼه څرګندوي، دا را ښیي چي کرکټر نارینه دی، که ښځینه، وړوکی دی که لوی، روغ دی که ناروغ، ټیټ دی که جګ، ښایسته دی که خوړجن (بد رنګه)، کلیوال دی که ښاري، داسي نوري ډېري ځانګړتیاوي او نخښي سته چي له ورایه په کرکټر کي ښکاري.

دغه خارجي اړخ د څېرې په معرفي کې ډېر ارزښت لري، مثلاً لیکوال یو چاغ کرکټر چي د چا له مرستي پرته کښېناستی یا پاڅېدی نه سي او په ډېري خوارۍ په یوه اړه بل اړخ اوړي داسي نسي انځورولی چي یو دم له یو روان موټره لري ټوپ کړي... لیکوال دا کار هم هغه وخت کولی سي چي په کیسه کي منطقي دلایل ولري، مثلاً که همدا چاغ کرکټر د ځان وژني نیت لري یا د یو ستر جنایت له امله د نیولو له وېري تښتي، نو په هغه حالت کي سلیم فکر نه سي کولی او غریزه ده ته د تېښتي قوت ور بخښي. یا دا چاغ کرکټر په موټر کي ناست سپرلي پوري وهي په دې حالت کي که د ده غریزه نه وي نو واک ئې هم نه وي بلکه قوه ئې تېل وهي." (۱۱: ۳۷).

په پورتنیو پراګرافونو کي د کرکټر د خارجي اړخ په اړه لومړني معلومات وړاندي سول. د کرکټر د ظاهري بڼې د دقیقي انځورونې له پاره ځیني نور د

پاملرني ور ټکي هم سته. دا هغه ټکي دي چې کرکټر لوستونکي ته په جزیاتو سره معرفي کوي او هغه ته ئې دژوندي موجود په توګه وړاندي کوي. د کرکټر ظاهري انځورونه که څه هم په ظاهره آسانه ښکاري، خو له فني اړخه ډېر دقت غواړي. "د کرکټر د ظاهري جوړښت او بڼې ځرګنده انځورونه هم د کرکټر کېښني يو لوی عنصر دئ. دا په زړه پوري کار که له يوه اړخه د ليکوال د مشاهدې او تخيل ځرګندونه کوي، نو له بل پلوه له لوستونکي سره د کرکټرونو د ذهني او اخلاقي اړخونو په پېژندنه کي هم ډېره مرسته کوي.

موږ له ادبي کرکټرونو سره تر هغه مهاله د يو ژوندي انسان په توګه اشنا کېدلای نه سو، تر څو هغوی له يو مشخص رنګ او روغن سره را معرفي نه سي. انځورونه دې ته وايي، چې د يو کرکټر بدني جوړښت، د هغه ځانګړتيا، رنګ و روغن، خط و خال، قد و قامت، د سترګو او ورېښتانو رنګ بيان سي."( ۱۰ : ٦۰).

دلته يوه بله خبره دا د يادوني وړ ده، چې له پورتني اقتباس څخه بايد ځوان ليکوال دا استنباط و نه کړي، چې دی بايد د خپل کرکټر د ظاهري بڼې د سمي انځورونې له پاره د هغه هر څه له سر څخه تر پايه بيان او انځور کړي. د نوموړي دا کار نه يوازي دا چې د کرکټر د ظاهري جوړښت په انځورولو کي مناسبه مرسته نه کوي، بلکي د هغه دا کار په خپل ذات کي د کرکټر کېښني له اصولو سره مخالف کار دئ. "له سره تر پايه په تفصيل سره د داستاني کرکټر د هر غړي د کيفيت بيانول يو غير هنري عمل دئ."( ۱۰ : ٦۱) له دې امله ليکوال بايد د خپل کرکټر ځيني ضروري اړخونه روښانه کړي او له نا مهمو څخه صرف نظر وکړي.

د کرکټر ظاهري انځورونه هغه وخت لا اغېزمن او بريالي تمامېږي، کله چې ليکوال خپل کرکټر په ظاهري ډول د يو خاص صفت يا ځانګړني څخه برخمن کړي. که چيري ليکوال دا کار وکړي، نو ښايي د کرکټر بشپړي انځوروني ته اړتيا پيدا نه سي، بلکي د هغه د همدې يوې يا دوو ځانګړنو بيان او انځورونه ښايي د هغه تصوير او بڼه د لوستونکي په زړه کي نقش کړي. "په دې کي شک نسته، چې د کرکټر په بدني جوړښت کي د يو خاص صفت رامنځ ته کول، د هغه د اغېزمنتوب له پاره بسنه کوي، بې له دې لوستونکی د کرکټر له بڼې سره اشنا کېدای نه سي."( ۱۰ : ٦۰).

د کرکټر د ظاهري بڼې په انځورونه کي د هغه لباس هم ځانګړی ارزښت لري. که چيري د کرکټر لباس د هغه له افکارو سره سمون ونه لري، نو ښايي لوستونکو ته له حقيقي ژونده ليري ښکاره سي. "په عملي ژوندکي د سړي لباس د هغه د ناستي پاستي پر کسانو اغېز کوي. پاک لباس اغوستل د يو کس د ښه خوی استازيتوب کولای سي. که يو کس له عادت خلاف لباس واغوندي هم پر نورو عجيبه اغېز کوي. (د بېلګي په ډول) که يو څوک خپل ملګری په لومړي ځل په سپېځلي جامه يا له پګړۍ سره ووينې، نو ښايي د هغه له سپېڅلتيا او درنښت څخه متاثره سي او د هغه د شخصيت په اړه ښه فکرونه وکړي."( ۱۰ : ٦۳).

نور بيا...

گل رحمن رحماني

# د شعر د تدریس لارې چارې

د هر علم او مسلک د تدریس میتود یا لارې چارې که څه هم په کلیاتو کې سره تړلې یا عمومیت لري، خو په ځینو برخو کې بیا ښوونکی اړ دی، چې د خپلو زده کوونکو ذهني ظرفیت او د وړتیا کچې ته په پام سره له ځینو فرعي او ځانګړو میتودونو هم کار واخلي.

په ټوله کې د تدریسي میتود موخه د موثري زده کړې او ګټور تدریس لپاره په ښه ډول فضا جوړول او زده کوونکي ته چې د ښوونې او روزنې محور یا مهم اړخ دی، د خپلې پوهې ګټوره لېږدونه ده.

دا میتود د ادبي متونو یانې شعر او نثر د تدریس په برخه کې ځکه پېچلی کېږي، چې په دې متونو کې کلمات د نورو علومو په څېر یوازې په مجردو ماناګانو نه کارېږي، یوه کلمه د یوې پر ځای دوې یا څو ماناګانې زېږوي، چې تر مطلوبې مانا رسېدل ئې اسان نه دي.

د ادبیاتو پوهنځیو پښتو څانګو کې د ادبي متونو د تدریس یو مهم اړخ شعر دی. د شعر تدریس ښایي تر نثري متن ګران وي، ځکه چې د شاعر د خبرو تحلیل او سپړنه ښایي هغسې لکه شاعر چې ئې کولی شي، دویم کس ته ګرانه وي.

بله ستونزه بیا د زده کوونکي ده، ځکه چې موږ له ټولو زده کوونکو دا تمه نه لرو، چې شاعرانه ذوق او طبیعت دې ولري او د شعري متونو د تدریس پر مهال دې د ماناګانو او مفاهیمو تر ژورو پوري ورسېږي، نو ځکه خواړینه ده چې استاد باید ځانګړې مهارتونه وکاروي، څو د نظمي یا شعري متونو له تدریس څخه مطلوبه موخه په ښه ډول تر لاسه شي.

شعر باید څوک تدریس کړي؟

د ادبیاتو پوهنځي استاد که شاعر هم نه وي، خو د شعر په اړه پوهه او معلومات لري، د شاعرانه ژبې له تخنیکونو او جوړښت سره اشنایي لري. دا چې محصل ته ئې څنګه تدریسوي، مانا او تفسیر ئې څنګه وړاندې کوي، د شعر په اړه د هغه د ذوق او تحلیل موضوع مطرح کېږي.

داسې متون باید تر ډېره د یوه ژبپوه پر ځای د ادب پوهنې یا کره کتنې استاد ته ورکړل شي، د ادب تاریخ او ادب تیوري استاد هم دا کار په ښه ډول کولی شي.

د میتودولوژي متخصصین د تدریس اصول په عمومي ډول په درېیو کټګوریو (شفاهي، عملي، عیني) باندې

وېشي چي په تدریس کي په ترتیب سره له (لفظي، تجربوي او مشاهدوي) مهارتونو بحث کوي.

ښایي چي د شعر په تدریس کي پورتني یاد شوي درې واړه میتودونه نقش ولري، خو دا چي د شعر د ښکلا یوه برخه لفظي ښکلاوي دي او د کلمو له پراخه چاپېریال سره مخ یوو، نو مدرس ته یې پر لومړي میتود برلاسی ته ډېره اړتیا ده.

کله چي استاد په ټولگي کي د ادبي متونو له منځه کوم شعر تدریسوي، نو اړینه ده چي استاد د شعري او عادي ژبې تر منځ په توپیرونو او تړاوونو پوه وي او کله چي خپلو زده کوونکو ته شعر تدریس او شرحه کوي، مخکي له مخکي یوه انگیزه او مقدمه وړاندي کړي، چي شاعر څه وایي او موږ د شعري محتوا د تحلیل لپاره څومره څواک لرو؟

د بېلگي په ډول ؛ موږ په یوه ادبي متن کي له لاندي شعر سره مخ کیږو:

همداسې ښه یم

له رنگ او نوره را جلایمه، همداسي ښه یم
د سوځېدلي نی نوا یمه، همداسي ښه یم

د بل له ستر گو مې د ژوند لارو ته ډېر وکتل
خو نور د خپل نظر مانا یمه همداسي ښه یم

اغزنو شپو کي ستا د شنې موسکا خوبونه وینم
له دې تصویر سره پخلا یمه همداسي ښه یم

هر ځای به لري تښتېدلی وم له خپلي څېرې
څه که اوس سیوری د عنقا یمه همداسي ښه یم

د درد په ژبه به مي تولي هیلي وژباړمه
د کوم رنځور زړگي درزا یمه همداسي ښه یم

د خپلو ځوانو ارادو ژبه مي زده نه کړله
اوس اندېښنو ته ور په شا یمه همداسي ښه یم

زه به کمزوری وم که ته لاړې کامل شوې پېره!
ستا په ښېرا ستا په دعا یمه همداسي ښه یم

ستا په خوشبو کي مي د بن گلونه نه بویول
اوس مسافر، سر په صحرا یمه همدسي ښه یم

د دغه شعر د تدریس له پیل نه وړاندې باید زده کوونکو ته په دې اړه ځیني معلومات وړاندي شي، چي لږ تر لږه لاندي پوښتني په کي ځواب شوي وي:

- شعر څه ته وایي؟
- شاعر څوک دئ؟
- شعري ژبه څه ځانگړتیاوي لري او له عادي ژبي سره ئې توپیر څه دئ؟
- د شعر موضوعات کوم یا کومي خبري په کي کیږي؟
- په شعر کي د خبرو لپاره د خبرو د جواز بریدونه کوم دي؟
- ایا په شعر رښتیا هم یوازي شاعر پوهېږي؟
- تاسي کوم مشهور شاعر پېژني، یا د چا شعر مو خوښېږي؟
- په دې ځای کي د شعر راوړلو موخه څه ده؟
- کېدای شي په ځینو زده کوونکو د هغوی د خوښې شعر هم تکرار شي؟
- په تاسي کي خو به څوک شاعر نه وي؟ که وي کېدای شي دا ډول پوښتني له هغه څخه هم مطرح شي.

دا پوښتني استاد او زده کوونکي په گډه ځوابوي. له دې پوښتنو مطرح کولو او ورته له نسبي ځوابونو وروسته بېرته پورتني شعر ته راگرځو. ښوونکی لومړی خپله دغه شعر په لوړ غږ لولي او بیا یې په ټولو محصلینو تکراروي. دا چي اوربدل د ژبې د تدریس یو مهم اړخ دی، نو په دې پړاو کي باید لاندي ټکي په پام کي ونیول شي.

- په لوړ غږ د شعر تکرارول.

- د پېچلو او نا اشنا کلمو دویم ځلي ادا کول.
- د لوستني پر مهال ځانګړې شعر لحن یا دیکلمې ته ورته انداز چې له عادي نثر سره یې توپیر وشي.
- د لوستني پر مهال د لیک دود، ځپو، وصل و فصل او فشار رعایتول.
- کېدای شي ځیني پېچلي بیتونه یا سختي کلمې په یوه محصل تکرار شي، که تېروتنه لري سمه شي او که ښه یې ولولي وستایل شي.
- له زده کوونکو دي پوښتنه وشي چې د کومي کلمې په تلفظ کي خو به ستونزه نه لري.

له دې پړاو نه وروسته د شعر د مانا کولو وخت را رسېږي، استاد دي یوه زده کوونکي د کتاب له مخي د شعر لوستني لارښوونه وکړي او خپله دي د شعر پېچلي یا ابهام لرونکي کلمې پر تخته له اړوندي یا مطلوبې مانا سره ولیکي.

کېدای شي په دې شعر کي ځیني مجردي کلمې او ځیني شعري ترکیبونه لکه (رنګ او نور، نوا، اغزنې شپې، شنه موسکا، تصویر، له خپلي ځېرې تېښته، عنقا، د عنقا سیوری، درزا، کامل پیر، ښېرا، دعا، خوشبو...)

په دې کلمو کي د ځینو مانا ساده ده، خو ځیني بیا ترکیبي ماناوي غواړي، چې د شاعرۍ له محتوا او ذوق سره اشنا ښوونکی یې له عهدې په ښه ډول وتلی شي.

مثلا رنګ او نور یاني او نوا د تصوفي یا عرفاني نړۍ اړوندي کلمې دي، اغزنې شپې د مزل او سختیو تر ټولو سخت حالت بیانوي، شنه موسکا نازکه یا د ماشوم په ځېر معصومه موسکا څرګندوي، د تصویر کلمې د مانا په بانه کېدای شي شاعرانه تصویرونه یو څه روښانه شي.

له خپلي ځېرې نه تېښته د بېګانه پروري ښه ده، عنقا یو ډول خیالي یا افسانوي مرغه دئ، چې د ققنوس او قو په ځېر خیالي موجود ګڼل کېږي او ویل کېږي چې دا مرغه په هوا سرګردانه ګرځي، سیوری یې هم نه موندل کېږي، کله چې هګۍ وکړي، څو چې خمکي ته را رسېږي، بېرته مرغه کېږي او هوا ته ځي. د زړه درزا هم د یوه حالت شرحه ده، کامل بیا د تصوفي نړۍ اړونده اصطلاح ده، یاني هغه پیر چې د تصوف اته پړاوونه یې پای ته رسولي او سکونت ته رسېدلی وي او په همدې ډول نورې کلمې....)

له دې پړاو نه وروسته استاد د شعر مانا او تفسیر ته مخه کوي، کېدای شي دغه تحلیل او تفسیر یې په ترتیب سره په دې ډول وي:

- شعر په کوم فورم کي راغلی دئ؟
- غزل دی، نو غزل څنګه شعري فورم دئ، چې باید شرحه شي.
- عمومي محتوا یې څنګه ده؟ یوازي د مینې او راز و نیاز خبري دي، که عرفاني او تصوفي رنګ هم لري؟
- عمومي پیغام یې څنګه دئ؟
- د بیتونو تر منځ یې پخلاینه څنګه ده؟
- کوم ادبي صنعتونه په کي راغلي دي که نه؟
- کوم ګرامري توکي په کي راغلي دي؟
- کېدای شي استاد وپوښتي چې په دې مفهوم سره خو به چاته کوم بل شعر نه وي په یاد، که وي وخت ته په پام سره یې دې یوه برخه یا ټول ووایي.
- له شعر نه مو خوند واخیست که نه؟ د مثبت او منفي ځواب لاملونه دي هم په ډاګه شي.
- او بالاخره دا چې عمومي پیغام یې څه دئ؟

پورتني ټکي ښايي وخت نيوونکي يا پېچلي وي، خو په ټوله کې د شعر د مفهوم واضح کولو تر څنګ په زده کوونکي کې د ادبي نقد ابتدايي ځواک را پيدا کوي او د شعر پوهاوی تر ډېره بشپړېږي.
د ليکنې په دې برخه کې به ځينې هغو ټکو ته هم اشاره وکړو، چې ښايي تر ډېره پورې په استاد پورې اړه ولري چې پرې د پوهېدو له لارې د شعر د تدريس په تړاو د زده کوونکو قناعت حاصلولی سي او کېدای شي تر ښه نه هم ښه ځواب ورکړي.
په شعر پوهېدل ولې مهم دي؟
د پښتو شعر سيلابيک جوړښت او ولسي ادبياتو ته په پام سره عام پښتانه ټول شعري ذوق لري، پښتو ژبه خپله ځانګړې داخلي موسيقي لري يا په بله اصطلاح سندريزه ژبه ده. له همدې امله د نالوستو پښتنو هم ځينې شعرونه په ياد وي، خو ددې ټکي يادول اړين دي، چې د سترو شاعرانو د شعرونو د معاني درک او تفسير نه يوازي چې د لوستونکي لپاره د شعر خوند څو برابره زياتوي، بلکې زموږ ذهني غوټې هم ورسره پرانېستل کيږي او ذهن مو د نورو علومو او مفاهيمو د درک او زده کړې لپاره ځان چمتو کوي.

1) کله مو داسې تصور کړی، چې د شعر يا ادبي متونو لوړېدل او لوستل ستاسې د ژوند پر روان بهير څه اغېز لري؟ بس همدومره ياد کړئ، چې شعر لوستل تاسې ته دا در يادوي چې خپل ژوند ته په لا ډېر اهميت قايل شئ.
2) شعر په لوړ غږ ولولئ، د کلمو په لوړ غږ ويل د دې لامل ګرځي چې کلمات دوه ځله ستاسې ذهن ته ننوځي چې يو ځل تګ ئې د غوږونو له لارې دئ.
3) د شعر نړۍ درک کړئ، کوښښ مه کوئ چې شعر له خپلو تصوراتو او خپلې نړۍ سره پلې کړئ. هڅه وکړئ، چې لومړنۍ دنيائې درک کړئ، کوم شعر مو چې پيل کړی، تر پايه ئې ولولئ.
4) کـه د شعر لوستلو پـر مهال لـه کـومې شـديدې وسوسې سره مخ کيږی يا مو د کوم بل متن لوستلو تـه طبعـه کيږي، نـو لـه خپلې دغـه وسوسـې سره مقابله وکړئ، په همدې چاپېريال کې پاتې شئ او شعر تر پايه ولولئ.
5) يو باور دا دئ چې ځينـې شعرونه هېڅکله هـم پـه رښتينې ډول نه شو مانا کولی، خو ځينـې نور بيا تفسيرولای شو، دا د لوستونکي په مهارت او هڅه پورې اړه لري، ځکه چې ټول ادبي متون کـه شعر وي يا نثر، مانا او تفسير لري.
6) که په شعر کې د کومې کلمې يا شعري ترکيب پـه مانا نـه پـوهېږئ، بـل بيت تـه مـه تـرې تېرېږئ، حتمـې ئـې مانـا پيـدا کـړئ، وروسـته بيـا خپلې لوستنې ته دوام ورکړئ.
7) ايهام په شعر کې تر ټولو ډېر کارېدونکی صنعت دئ، ځيني ورتـه د شعر د وړاندې کولو اساسي او مهم توک وايي، يانې د شعر نږدې او لرې يا پـه بـل عبارت مطلوبې او نا مطلوبې ماناګانې. لوستونکی بايد د شعر ايهام درک او په ډولونو ئې پوه شي.
8) د شـعر پـر ځـانګړو پېچلتيـاوو پوهېدنـه وخـت او تمرين تـه اړتيـا لري، خـو تاسې خپلې لوستنې، يادولو او تفسير ته دوام ورکړئ.
9) شعر له شاعر څخه لا جلا کړئ، کوښښ مه کوئ چـې د شـعر پـه تفسـير کـې د شـاعر د ژونـد او شخصيت په اړه فکر وکړئ او نتيجه ترې واخلی.
10) کلـه چې پـه مانـا کې لـه کـوم ابهام سره مخ کيږی، بيا ئې ولولئ او ډاډمن شئ، چې ددغه ابهام

لامل خو به د کلمو په درک کي ستاسي کمزوري نه وي.

11) د شعر له لوستو خوند واخلئ، که چیرته کوم شی په زور او جبر سره ولولئ، نو هیڅکله ئې له مانا درس او خوند نه شی اخیستلی.

12) ضرور نه ده چي د شعر په ټول مفهوم او مانا دي پوه شی. شعر یو تړلي صندوق ته ورته دی، ممکن له څو ځله هڅو وروسته وتوانیږی، چي دروازه ئې خلاصه کړی. یا هېڅ خلاصه نه شي، خو خپله د شعر لوستل تاسي ته خوند درکولی شي.

13) له متن نه خپلي اخیستني، فهم یا د خوښي ټکي او بیتونه د یادښتونو ځانګړي کتابچه کي درسره ولیکئ.

14) د یوه شعر د مانا په نه پوهېدو کي هیڅ زیان نشته، یوازي ستاسي وخت در نه اخیستل شوی، خو په بدل کي ئې له څو نوو کلمو سره اشنا شوي یاست. یا مولږ تر لږه د یوې شېبې لپاره له خپلي نړۍ او شاوخوا ځان جلا کړی دئ.

15) کوښښ وکړئ ځیني مشهور شعري فورمونه لکه غزل او قصیده وپېژنئ. د شعر مانا کله – کله د هغو په فورم کي هم نغښتې وي. د بېلګي په ډول غزل اکثره عاشقانه او کله – کله عارفانه خبري لري، خو قصیده کي تر ډېره د زده کړي او عبرت خبري وي.

16) د ډېرو شعرونو په لوستو سره مو د نورو نثري متونو په لوستو کي هم مهارت لوړیږي. په دې توګه شعر لوستل د ادبیاتو په نړۍ کي ستاسي د پرمختګ پیل دئ.

17) شعر لوستل مو زغم، حوصله، ذهنیت او د قضاوت ځواک پیاوړی کوي، ځکه د لوستني پرمهال تاسي له خپلي مجردي یا وچي کلکي نړۍ نه د عاطفې او احساس نړۍ ته وړي او دوه متفاوت حالتونه درباندي څکي.

18) شعر لوستل ستاسي د نړۍ او شاوخوا په اړه ستاسي درک لوړوي. همدا لامل دی چي شعر څومره تکرار کړئ، د معاني په پوهېدو کي لا مسلکي کیږئ.

19) کوښښ وکړئ چي شعر لوستل د خپلي ځوانۍ په عادتونو بدل کړئ، څو په بوډاتوب کي د ناویلو شعرونو ارمان در نه شي.

20) شعر لوستل د دې لپاره نه دي چي د خبرو لپاره باید څه ولری، شاعر د چوپتیا هنر در زده کوي، څو د عقل ځواک مو لا پیاوړی شي.

دا چي د تدریس مهارتونه ډېر ځله د ښوونکو په ځانګړو مهارتونو پوري هم تړاو پیدا کوي، نو زما پورتنۍ خبري هم حکم نه دی او زما د هغو تجربو په رڼا کي مي چمتو کړي چي له شعر، شاعر او د شعر له مخاطب څخه ئې لرم.

په پای کي د دې خبري کول اړین بولم چي شاعر ته د شاعر پوهول اسان کار دئ، خو د شعر مخاطب اکثره وخت شاعر نه، بلکي عام لوستونکی وي، چي ښایي د شعر تلني معیار ئې یوازي ذوق او خوند وي، نو له دوی سره په شاعرانه ژبه یا د لفظي او معنوي فنونو په مرسته خبري کول د اسانتیا پر ځای موضوع لا پېچلي کوي، خو دا چي اکثره زده کوونکي هم په دې ډله کي راځي، نو مخکي له مخکي ئې د شعر په اړه پوهاوی ډېر اړین دئ.

پای

جان محمد مهربان

# د پرېکړو پروسه

## Decision Making Process

(دوهمه او وروستۍ برخه)

۷- حکمي او تشريحي پرېکړې Normative and descriptive:

حُکمي پرېکړه دې پوښتني ته جواب وايي چي پرېکړ باید څنګه وسي. تشريحي پرېکړه بيا وايي چي پرېکړ اصلاً څنګه کيږي. حُکمي پرېکړه په داسي حالتو کي کيږي کله چي مبهم والی ډېر وي، معلومات کم او حالت ګونګ وي. دحُکمي پرېکړو ساحه کوچنۍ ده.




دپرېکړو چاپيريال/ محيط: يو مسلکي پرېکړه کوونکی شايد ټول هغه معلومات ونه لري چي د پرېکړي کولو په وخت کي ورته ضرورت وي. دغه مشکل به يا ډېر پېچلي يا مبهم وي. دپوهي دغه شرطونو يا حالاتو ته دپرېکړي کولو محيط / چاپيريال وايي، چ پر معلوم چاپيريال، د خطر چاپيريال، نامعلوم چاپيريال وېشل کيږي. دپرېکړو محيط پر يوه مستقيمه ليکه ښودل کيږي. دليکي په يوه سر کي هرڅه معلوم وي. مدير يا پرېکړه کوونکي دخپلي پرېکړي له نتيجې/ تاثير څخه خبر وي. دليکي په منځ کي يو څه معلومات وي مگر نورو معلوماتو ته ضروت سته چي سره راټول سي. دلته مديران د خطر سره مخ دي ځکه د پرېکړي په اړه شکمن وي. دليکي په پای کي هرڅه نا معلوم/ مبهم وي، پرېکړو کوونکي د خپلو پرېکړو په نتيجه نه پوهيږي يا ئې هيڅ اټکل نه سي کولای.

دپريکړې سبکونه Decision Styles:

د ستونزي دحل له پاره د پرېکړه کوونکي د فکر کولو روش (manner) ته دپرېکړي سبک ويل کيږي. د پرېکړو کولو څلور سبکونه سته چي هر يوئې د حالت او د منېجر له طبيعت سره سم استعماليږي. د پرېکړو کولو سبک له يوه حالت څخه بل حالت او له يوه منېجر څخه بل منېجر ته فرق کوي. دپريکړې سبک ديو منېجر دپوهي تابع دئ. لاندي دپرېکړي کولو هغه سبکونه دي چي منېجر ور څخه کار اخلي.

۱- هدايتي يا استبدادي سبک Directive/Autocratic:

په دغه سبک کي:

الف) پرېکړه  یوازي د منبجر یا دفرد دپوهي، معلوماتو، تجربې او قضاوت پراساس کیږي.
ب) د نامعلومتیا په اړه له حوصلې څخه لږ کار اخیستل کیږي.
ج) دپرېکړو غه ډول سبک د هغو ستونزو له پاره مناسب دئ چي روزمره پېښیږي او د حل له پاره ئې خاصه کړنلاره وي.
د) هغه پرېکړه چي دمنطقي پروسې( rational process) له لاري کیږي، د ذهنیت عناصر (subjective elements)هم پکښې ګډ وي. استبداي پرېکړي هم دمنبجر د منطقي فکر پر اساس کیږي.
هـ) په دغه سبک کي ترلاس لاندي کسانو څخه معلومات نه غوښتل کیږي خو؛ په نورو لاندي درو سبکونو کي له کارمندانو څخه معلومات راټولیږي. تشریح ئې لاندي راغلې ده.د ګروپ مشر ستونزه حلوي. د نورو کسانو د معلوماتو څخه کار نه اخلي، مشر/رهبر پر خپلو معلوماتو متکي وي. دغه سبک وایي چي منبجر پوره معلومات لري؛ کولای سي چي پرېکړه وکي او ستونزه حل کي خو همېشه داسي نه وي.
۲-تحلیلي سبکAnalytical :
په دغه سبک کي:
الف) منبجر پوره معلومات نه لري چي دستونزي په اړه اغېزمنه پرېکړه وکي نو د ترلاس لاندي یا نورو کسانو له معلوماتو او مهارتونو څخه کار اخلي.
ب) منبجر خپلو ترلاس لاندي کسانو ته دستونزي په اړه ډېري خبري نه کوي، صرف د معلوماتو پوښتنه ځني کوي.
ج) مشر یا منبجر معلومات وروسته ارزیابي کوي او بیا پرېکړه په خپله کوي.
د) تحلیلي سبک هم دمنطقي پروسې له لاري تطبیق کیږي مګر له حوصلې څخه زیات کار اخیستل کیږي.
هـ) منبجر لومړی معلومات راټولوي او بیا پرېکړه کوي.
۳-تخلیقي سبک Conceptual/Creative :
په دې سبک کي:
الف) منبجر هغه چا ته چي معلومات ځني غواړي، حالت تشریح کوي او بیا دستونزي دحل لاره جوړوي او په ګډه ئې ارزیابي کوي.
ب )د تخلیقي سبک منبجران ډېر پراخ لیدلوری لري؛ دپرېکړي کولو له پاره زیات بدیلونه لټوي.
ج) منبجران د تخلیقي نتیجې په اړه تر پرېکړي مخکي داوږدې مودې له پاره فکر کوي.
۴-سلوکي سبکBehavioral :
په سلوکي سبک کي:
الف) منبجر ګروپ یا افرادو ته حالت تشریح کوي او بیا مربوط معلومات ور څخه غواړي.
ب) دوی ټول کوښښ کوي چي پر داسي یو حل لاره سره موافق او جوړ سي چي ټولو طرفینو ته دمنلو وړ وي.
ج) دغه سبک دفکر پر تخلیقي اساس جوړ دئ او د مبهم والي په اړه له صبر څخه لږ کار اخیستل کیږي.
د) ددغه سبک منبجران د فعالیتونو د اجرا کولو او دستونزي دحل له پاره نوې طریقه وړاندي کوي.

د وي روم او يټون دپرېکړي کولو موډل: کاناډايي پروفیسر ویکټور هارلوډ ویروم ( اګست ۹، ۱۹۳۲) په ۱۹۷۳ مېلادي کي لومړی د فيليپ يټون سره په ۱۹۷۳ او ورسته بیا له ارتر جاګو سره په ۱۹۸۸ مېلادي کي دپرېکړي کولو موډل ته انکشاف ورکړ. (ويکيپيډيا). له دغه موډل څخه په رهبري کي دګروپي پرېکړو له پاره کار اخیستل کیږي. ددې موډل وړاندي کوونکي په دې باور ول چي ددوی تیوری منېجرانو ته دستایل د بدلون زمینه برابروي چي له حالت سره ځان سم کي. وي روم او يټون دمنېجرانو د پرېکړي کولو له پاره تر درو عمومي عنوانونو لاندي پنځه سبکونه مشخص کړل. دغه سبکونوته (A1, A2, C1,C2, G1)ويل کیږي.

اول: استبدادي سبک Autocratic : استبدادي سبک پر اې ون او اې ټو وېشل کیږي:

AI: په اې ون سبک کي پرېکړه په فردي ډول د هغو معلوماتو پراساس کیږي چي د پرېکړي په اړه اماده وي.

AII: په اې ټو سبک کي منېجر معلومات ترلاس لاندي کسانو څخه ټولوي مګر پرېکړه په خپله کوي. شاید دستونزي ماهیت ترلاس لاندی کسانو سره یا شریک یا ئې شریک نه کړي. تر لاس لاندي کسان د ستونزي په پېژندلو یا دبدیلونو په پیداکولو کي کومه ونډه نه لري.

دوهم: مشورتي سبک Consultative:مشورتي سبک په سي ون او سي ټو مشهور دئ:

CI: په سي ون سبک کي منېجر ستونزه له اړوند افرادو سره په فردي ډول شریکوي. دهر فرد نظر په فردي توګه اخلي. منېجر پرېکړې کوي بېله دې چي تر لاس لاندي کسانو له پېشنهادونو څخه متاثیر یا غیر متاثیر وي.




منبع: ویکیپیډیا

CII: په سي ټو سبک کي ستونزه ترلاس لاندي کسانو سره په ګروپي ډول شریکیږي چي د هغوی نظریات او پېشنهادونه راټول سي. وروسته منېجر پرېکړه کوي. کېدای سي د ګروپ نظریات پکښې راغلي او یا نه وي راغلي.

درېیم: ګروپي موافقهGroup Consensus: ګروپي موافقه لاندي برخي لري:

GI: په جي ون سبک کي ستونزه ترلاس لاندي کسانو سره په ګروپ کي شریکیږي. بدیلونه په ګډه لټول او ارزیابي کیږي. په دې ستایل کي کوښښ کیږي چي منېجر د ګروپ له غړو سره موافقې ته ورسیږي. منېجر دګروپ پر غړو تاکید نه کوي چي دده/ددې نظر ومني ځکه چي منېجر اراده لري چي دګروپ نظر عملي کړي. دغه ډول پرېکړه ګټي او تاوانونه لري. ګټي ئې دادي چي:

۱) دپرېکړي پر مهال دګروپ غړي یو و بل مني.
۲) همکاري رامنځ ته کیږي.
۳) کمونیکېشن اسانه کیږي.
۴) ډېر بدیلونه په لاس راځي

۵) ډېر معلومات تبادله کیږي
۶) تجربې سره شریکیږي.
تاوانونه ئې دادي چې:
۱) زیات وخت مصرفیږي.
۲) شاید گروپ پرېکړه ونه سي کولای.
۳) گروپ دستونزي دحل او د پرېکړي پرځای روغه جوړه وکي.
۴) کېدای سي گروپ دیو چا له تسلط څخه متاثیر سي.
۵) شاید په اخیر کي دگروپ فکر ته ارزښت ور نه کول سي.
پرېکړه کول به هغه مهال یو ساده کار وای که ئې په اړه داسي یو منل سوی فارمول وای چې په هرحالت کي د تطبیق وړ وای خو په ټولنیزو علومو کي داسي فارمول نه سته. په هره پرېکړه کي کوښښ کیږي او باید وسي چې د چلینجونو مخنیوی وسي. د هر ډول پرېکړي دپاره یوې سیستماټیکي طریقې ته ضرورت سته. هر ډول پرېکړه چې کوئ باید په پوره ډاډ ئې وکئ. د لیکني په اخیر کي مي یو لنډ امتحان راوړی دئ. لاندي سوالونو ته جوابونه ورکئ او بیا په اخیر کي خپلي نومرې وگورئ چې په خپلو پیاوړو او کمزرو ټکو پوه سئ. د جدول په راسته اړخ کي جمله درکوله سوې ده. په چپ اړخ کي ئې اپشنونه درکول سوي دي چې د وخت فریکوینسي درته ښئي. یوازی هغه یو اپشن انتخاب کئ چې تاسو په اوسني حالت کي په واقعي ډول تشریح کوي. هري جملې ته په صداقت سره جواب وواياست. که مو په اخیر کي نومرې کمي سوې یا ځیني منفي حالتونه دربادي تطبیق کېدل نو مه خوابدي کیږئ؛ دغه تمرین د ځان د اصلاح او زده کړي په نیت دئ. غلطي چې پر هر ځای او هر وخت اصلاح سي، په گټه مو ده!

لاندي د هر حالت مخ ته پنځه نور کالمونه سته. تاسو له یوه څخه تر پنځو پوري یوازي په یوه کالم کي ځان ته نومرې ور کولای سئ. مثلاً کله چې د لومړي شمارې حالت ته د «ډېر وخت» په کالم کي ځان ته درې نومرې ورکئ، په دغه افقي خانه کي د «عموماً، کله – کله، ډېر لږ او هیڅکله» په کالمونو کي ځان ته نوري نومرې ورکولای نه سئ. د دوهمي شمارې دوهم حالت به واياست، بیا به ځان ته ددغه لاربښووني سره سم یوازي په یوه کالم کي له یوه څخه تر پنځو پوري نومرې ورکوئ. د هر حالت له پاره ټوټل نومرې پنځه دي، ټول سوالونه اتلس دي، دغه دوه عددونه چې سره ضرب سي، ټوټل ئې باید نیوي سي. (۵*۱۸= ۹۰).

ازموینه:

| شماره | حالت | ډېر وخت | عموماً | کله–کله | ډېر لږ | هیڅکله نه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | زه تر پرېکړي مخکي دهر بدیل سره مل خطرونه ارزيابي کوم. | | | | | |
| ۲ | تر پرېکړي ورسته، پوهېږم چې زما پرېکړه نهایي پرکړه ده. زه باور لرم چې زما د پرېکړي پروسه پیاوړي وه. | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳ | مخکې تر دې چې د پرېکړو پروسه راپیل کړم، زه کوښښ کوم چې په اصلي موضوع ځان پوه کم. | | | | | |
| ۴ | زه دمشکل حلولو له پاره دخپلو تجربو څخه کار اخلم. | | | | | |
| ۵ | زه غواړم چې دستونزي په اړه یو طبعي شعور ولرم. دپرېکړو په ټوله پروسه کې مې پردغه شعور تکیه وي. | | | | | |
| ۶ | زه کله –کله دخپلو پرېکړو داصلي نتیجو په اړه حیران یم. | | | | | |
| ۷ | زه دخپلو پرېکړو دپاره یوه سمه تعریف سوې پروسه کاروم. | | | | | |
| ۸ | زه فکر کوم چې دپرېکړو په پروسه کې ډېر کسان داخلول په اصل کې دپرېکړو پروسه نوره هم پېچلې کوي. | | | | | |
| ۹ | که زه دخپلو پرېکړو په اړه شکمن سم نو پروسې ته له سره کتنه کوم. | | | | | |
| ۱۰ | زه دخاصو پرېکړو دپاره ځان ته وخت ورکوم چې تر ټولو ښه وسیله انتخاب کړم. | | | | | |
| ۱۱ | زه تر پرېکړې مخکې د حل مختلفي لاري لټوم. | | | | | |
| ۱۲ | مخکې تر دې چې زه دخپلو پرېکړو په اړه وړغېږم، د تطبیقولو یو پلان ورته جوړوم. | | | | | |
| ۱۳ | په ګروپي پرېکړو کې زه دخپلو ملګرو د پېشنهاد ملاتړ کوم او کوښښ کوم چې د تطبیق لار ورته پیدا کم. | | | | | |
| ۱۴ | کله چې دخپلو پرېکړه په اړه ږغېږم زه خپل استدلال او توجیه پکښې داخلوم. | | | | | |
| ۱۵ | ځینی آپشنونه چې ما انتخاب کړي دي، په عمل کې زما تر توقع سخت ول. | | | | | |
| ۱۶ | زما خوښېږي چې پرېکړې په خپله وکړم او بیا نورو خلګو ته اجازه ورکوم چې زما دپرېکړو په اړه پوه سي. | | | | | |
| ۱۷ | زه دپرېکړو په اړه تر ټولو مهم عوامل تشخیصوم او بیا دغه عوامل ددې له پاره استعمالوم چې خپلې پرېکړې ورباندي ارزیابي کړم. | | | | | |
| ۱۸ | ددې دپاره چې دخپلو پلانونه له پاره ملاتړ ترلاسه کم، زه | | | | | |

تاکید کوم چې پر خپلو پرېکړو ډاډمن یم.

**دنومرو تو تل**

| نومرې | تشریح |
|---|---|
| ۱۸-۴۲ | ستاسو دپرېکړو مهارت لا پوخ سوی نه دئ. تاسو د واقیعت پر ځای پر پرېکړه بخت، طبیعت او وخت ته ور پرېږدئ. کوښښ وکئ چې دپرېکړو کولو مهارت مو داسي پیاوړي کئ چې د پرېکړي پر ځای د پرېکړو پر پروسه تمرکز وکئ چې پرېکړي ته خپله ورسېږئ. |
| ۴۳-۶۶ | ستاسو دپرېکړو پروسه سمه ده. دپرېکړو په اساساتو پوهېدلي یاست مګر داصلاحاتو له پاره نور کوښښ هم وکئ چې دستونزي مربوط نور خطرونه، اپشنونه او نتایج په لاس راوړئ. څونده چې تاسو ښه تحلیل کوئ هغونده به مو پرېکړه ښه وي. پر هغو اړخونو تمرکز وکئ چې اپشنونه مو پکښې له لاسه ورکړي دي او داسي یو سیستم جوړ کئ چې په مختلفو حالتو کي کار درته وکي. |
| ۶۷-۹۰ | ستاسو دپرېکړو طریقه فوق العاده ده.تاسو پوهېږئ چې دپرېکړو پروسه څنګه راپیل او اپشنونه څنګه جوړ کئ. تاسو د ستونزو مربوط اپشنونه په احتیاط سره تحلیلوئ او دخپل پوهاوي سره سم بهترینې پرېکړي کوئ. دهغو اړخونو په اړه بیا هم فکر وکئ چې تاسو پکښې اپشنونه له لاسه ورکړي دي او کوښښ وکئ چې دپرېکړو په پروسه کې ئې څنګه داخل کړئ. |

پرېکړه کول په ټولینز او مسلکي کي ژوند کي یو مهارت دئ. مهارتونه داصلاح وړ دي. څونده چې تاسو ډېري تجربې او پوهه حاصلوئ په هغه اندازه مو د پرېکړي مهارت اصلاح کیږي. د نړۍ په مختلفو پوهنتونو کي د پرېکړي کولو مضمون په مختلفو څانګو کي تدریسیږي. پرېکړه زموږ د کلتور یوه برخه ده، افغانان په جرګو او مرکو کي پرېکړي کوي. نوي ځوانانو باید له فُرصت څخه ګټه واخلي. که پرېکړه کولای نه سئ، مشران دې پکښې داخل کي ځکه دغه مسؤلیت راتلوونکي نسل ته ورپاته کیږي. نو نن ئې باید زده او سبا ته ئې عملي کړئ.

پای

# هنر او ادب

چلوونکی: م.ا. امید

عطايي ملا

## غزل

غزالـه د ختـن غـوړ وه د خپـــل حسـن و غـزل تـه
ما يې غلې نافه غلا کړه ستا مشکين چپه کاکل تـه

نن د حسن ښاريه کـــي دمــــخ لمـــر يمه وهلی
لړ و سيور ي تـه ځان کاږم، ځم د ځنو و ځنګل تـه

لېونی پـه تـار د زلفـو وخـــوت ولاړ تـر کـوه قافـه
دشعور پېريـان لا ناست دي، منتظر عقل پاګل تـه

ژونـد حسـرت د ارمـانونو، مـرګ وصلت د امېـدونو
د وفـا لاره اغزنـه ځـــي د عشـق خـوني کوتـل تـه

چي ګټې جنت پـه زهـد، چي تلې فضل پـه جهد
شېخ شـمعونه! يهوديـه! وبـه نـه رسې اټکـل تـه

ســـوداګره ګټياليه! ستا اوښ دروند په بـار د تمـــي
موږ پښې يـبلي لاروي يـو، سپک، هوسا رسو منـزل تـه

چي تصوير د خان دميني،کړم انځور د ځان آيينـه کـي
اوروم د سترګـــو پرخـه،د تـــورکاني زړه صېقل تـه

دم قدم دام دفرنګ دئ، پر تخت ناست غاصب اورنګ دئ
ښه پوهېږم چي مقتل دئ ،خو ورځـــم جانـان کـــابل تـه

احمد شاه ژوبل

## ديموکرات و ملنګ

عشـــق دي کړمـــه ديمـــوکرات و ملنـــګ دواړه
راتـــه يـــو ښـــکاري ګـــدا و اورنـــګ دواړه

ســـتا تصـــوير مـــي تصـــورکي مجســـم دی
اثرنـــــه کـــړي پرمـــا بـــاده و بنـــګ دواړه

پـــه ځـــوانۍ کـــي پـــه ژوندينـــه ځـــوانيمرګ يـــم
نـــه ســـتايمه ســـپينه غـــاړه لونـــګ دواړه

خيـــال ديـــار کـــه د وطـــن غـــم وګالمـــه
راحـــت نـــه را بخښـــي خـــوب و پالنـــګ دواړه

خـــاموشي مـــي ده غوغـــا، غوغـــا خاموشـــه
ځـــو دي کړمـــه زه ويـــونکۍ او ګونـــګ دواړه

لويـــه مينـــه پـــه کـــوچني زړه کـــي ســـاتمه
شرمـــولي مـــي دي بحـــر و نهنـــګ دواړه

د ريـــا پـــر کوځـــه نـــه يـــم ورغلـــی
رخصـــت کـــړي مـــي دي نامـــه و ننـــګ دواړه

لکـــه اوښ چـــي ســـري دوه ځايـــه حـــلال وي
ژوبـــل داسي کـــوي مينـــه او جنـــګ دواړه

شفیق الله درویش

## غزل

د تنهایي له اظطرابه مې راپاڅوه
راشه د سترې ژوند له خوابه مې راپاڅوه
په ما د سرو لبانو څر وکه ګناه وکه
څه کنه خیر دی له ثوابه مې راپاڅوه
که قتلوې مې د ټوپک هیڅ ضرورت نشته
که قتلوې مې له کتابه مې راپاڅوه
لکه د وچې دوړې ژوند به اوبو تېروم
وخته اوبال یم له دې عذابه مې راپاڅوه

ستا د جفا په حساب ستړی شوم شفیق درویشه
جار شمه بس له دې حسابه مې راپاڅوه

زینب هیله

## غزل

په تاپوره نه سوه په ما باندي ودانه نه ده
خو زېرېدلې زنده ګي هم له خپګانه نه ده
ما اوس د هری مجبوری سره پر زړه نیولي
ستا د غمونو یارانه دومره اسانه نه ده
بې مشکلاتو زنده ګي پښتنو کړې نه ده
بې مشکلاتو زنده ګي دلته روانه نه ده
نور زه د خپل زړه په ځېرولو پسې خپله وځم
د ښکلو وارندي د بای للو کیسه ګرانه نه ده

زه چي اوس سوځمه د ژوند غوښي په اور د بیلتون
بس کومه "هیله" مې را پاته له جانانه نه ده

عنایت الله عارف

## غزل

مورځان ته په خوښي ځان ته په نازکي سوله غواړو
دا ځل په غزلیز غوندي انداز کي سوله غواړو
د خپلي شاعري په ذوق کي هر یو شاعر ځان ته
همېش په حقیقت او په مجاز کي سوله غواړو
پښتون اوهزاره ازبک تاجک واړه قومونه
په یو وجود یو زړه او یو آواز کي سوله غواړو
چي کله ویده کېږو؛ نو په نیت د نېکپالیو
د هر خوب د تعبیر په هر یو راز کي سوله غواړو
(عارفه!) له پنکار سره د وخت شعرونه راوړه
چي ورکه مو ژړا او د غم ساز کي سوله غواړو

داد محمد بختیار

## غزل

هسي نه چي دی ناکام دئ سوله غواړي
دې سړي سره ښه پام دئ سوله غواړي
یوه مور دېوه په لاس دعا په شونډو
ځي زیارت ته تور ماښام دئ سوله غواړي
اوس جنګ نه کړي انتقام اخلي له جنګه
اوس ئې کړی ښه اقدام دئ سوله غواړي
بیا مي زوړ زخم د ورور قاتل تازه کړ
بیا راغلی ئې پیغام دئ سوله غواړي
ستا کاته د جنګ دوام دئ جنګ ترې زېږي
ستا په شونډو کي سلام دئ سوله غواړي
څه چاره ورته په کار ده نازولي
ستا "بختیار" په تا بدنام دئ سوله غواړي

احسان الله زیارمل

## غزل

پـه یـو لاس کـې دې کتـاب دئ انډیوالـه
پـه بـل لاس کـې دې ربـاب دئ انډیوالـه
اې تـه واوره مـین سـوی خـو بـه نـه یـې!؟
نـن دې بیـا فکـر خـراب دئ انډیوالـه
مېلمانـه دې زمـوږ کوټـه کـې تـه هـم راسـه
یـو دئ (قـیس) او بـل (تـراب) دئ انډیوالـه
چـې د زړه خـبره کـړم بـدن مـې رپـږدي
لـږ مـې زړه کـې اضـطراب دئ انډیوالـه
یـو پـه بـل پسـې غـزل لـیکم زیارملـه
پـروت مـې زړه کـې لـوی دریـاب دئ انډیوالـه

حبیب الله قلم مل

## غزل

پرهاره، چې تر کوره دې راتلم نو درد مې نوم سو
پر تا او پر خاوند دې مې بې واره زړگی موم سو
لحظې د شهادت د تېپـدو د حساب نـه وې
دا وخت په تېرېـدو کې داسې شمار لکه زقوم سو
نسیم، چې پر کوځه د رقیب راغلی نو سوؤ داسې
تریخ باد سو او بې خونده په راتلو کې ډېر مذموم سو
د تېـرو حوادیثـو کیسـې بیـا ولې تکـرار سي
افسوس پـه دې گټلی او پیدا نوم دې معدوم سو
که ور مو کړه هستي خو د نیستی په غېږ کې بیا هم
دوښمن، چې مو ؤ ورک هغه دوښمن مو را معلوم
دا زېری د خوښی د (قلم مل) لـه خولې څه واوری
د ظلم قـدر ټیـټ پـر اقتـدار غریـب مظلـوم سو

صدیق الله رحیمي

## غزل

یـوه ډېـوه ده خـامـوشي ستـا د تصـویر نـنداره
راځـه راځه ده تنهـایي ستـا د تـصویر نـنداره
د سترگونم زړگـی غمـجن ستـا د راتلـو پـه تمـه
ژونـدون تیـاره ده خامـوشي ستا د تصویر نـنداره
یو څوك ولاړ غواړي رخصت دلته ئې ژوند پـه عـذاب
دا بې کـسي او دا ځوانـي ستـا د تصـویر نـنداره
غـوارمـه تـا، راځـي ژړا ستـا د بیلتـون لـه زوره
څنگـه بـه سي دا زنـدگي ستـا د تصـویر نـنداره
دغـه مجنـون غواړي جنـون ستا د دوو سترگو نـظر
خوښ ئې دی ستا، ستا خوشبویي ستا د تصویر نـنداره
کړي نـنداره ستوري سپوږمۍ سور د شپیلی ږغېږي
پـرمخي پـروت ستـا "رحیمي" ستـا د تصویر نـنداره

علي احمد ثمر

## غـزل

مـا انتظار نـه په هفتـو نـه پـه میـاشتو کـړی دئ
مـا انتظار در تـه پـوره د څـو کلـو کـړی دئ
ستـا و تـرون تـه لکه تـرۍ مـرغه تـرۍ ومـه
چـې انتظار مـې د تـرون د دې شپـو کـړی دئ
چې د زړه درد لـه ډېره غمه نور پـه جـوش کې نـه سي
مـا انتظار درتـه د اوښکو پـه جرگـو کـړی دئ
د زړه لمبـې مي نـور تـر ستوني پـوري ورسېدې
مـا انتظار د تنـاره پـر سـرو لمبـو کـړی دئ
ستـا د پـرهـرو لـه درده دې وجـود ډېـر وژړل
ثمـره تا خـو انتظـار د بـې پښتـو کـړی دئ

عاطفه تنده

## غزل

درد مـــي نيــولی لـــه خفگانـــه زړه دئ
نـــور ئـــې درســـپارمه جانانـــه زړه دئ
اوس بـــه لـــه هـــري زمـــانې پوښـــتمه
پرمـــا مـــو ولي بدگمانـــه زړه دئ
غـــرور د ځـــو ښـــکلو ښخـــي مـــاتوم
ورڅخـــه ځمـــه لـــه جهانـــه زړه دئ
د مينتـــوب کيســـه مـــي مـــه يـــادوه
درپســـي نـــه مرمـــه انســـانه زړه دئ
تـــه چـــي ذره پـــه يـــاری نـــه پوهېـــدې
څـــه لـــه دي وړئ تـــر زندانـــه زړه دئ

حبيب شاه اسرار

## غزل

بل کس ژغورم خپله پر خنده د کړنگ هم يم
که هوا باز يمه وحشي هم يم نهنگ هم يم
لکه اختر په ځان کي غرونه خوشحالی لرم
لکه کابل په خپلو وينو باندي رنگ هم يم
لکه بې درده پاچا خوار ولس مي ياد هم نه
او غځېدلی د خوبانو پر پالنگ هم يم
لکه حاتم له خپل سخا نه راتېولېږم نه
لکه بلال توده صحرا سينه په سنگ هم يم
لکه پښتون په تاريخونو تر هر چا بډای
لکه پښتون د يوويشتم قرن ملنگ هم يم
زه اسرار ذات د هر حالت برداشت په تن لرم
که ستا د ميني د جواب يمه د جنگ هم يم

عصمت الله زهير

## غزل

اوږد بې نوم غوندي ځنگل کي ستا لټون پسي روان يم
سـمندر غونـدي ژور سـوم چـول نيـولی بيابـان يم

ستا د کـلي ماشومان مـي ستا پـه نـوم يـادوي گـوره
ستا کـوڅې راپسي ژاړي ، ستا د کـانو ډېـر ارمـان يم

د گناه خونخواري نخښي چي ماښام سي په نڅا سي
زه به څومره يم سپېڅلی ، زه بـه څـومره يـو انسان يـم ؟

د کـردار او ضـمير خلـگ سـتوري راوړي تيـارې يـوسي
څوک مي غوږ کي راته وايي پته خوله يو مست توپان يم

د دې عصـر انځـورگر بـه رسـموي ځيـرې لـه وينـو
د دې دور شـاعر بـه وايـي د خپـل عصـر تـر جمان يـم

عبد الله ستوری

## غزل

غـم دي شـبه پـر شـبه نـوي ازمـويني کـوي
لکـه دمـار زهـر پـه زړه کـي غـزوني کـوي
دخوشـی پـانی مـي د ژونـد پـر ځانگـه نـه را پريـږدي
دغـم خـزان بـه لا تـر څـو دا رژوني کـوي
دا خـپلي سـترگي مـي قـاتلي سي د خپلـو اوښـکو
د افغانـانو پـه ځېـر خپـل کـور کـي وژني کـوي
زه لکـه شـمع د لمبـې جوغـه پـرسر کښـېږده مـه
چـي پـه اور بـل کـي د مـلالي څـوک چـاودني کـوي
د وفـاتوري خـو دښـکلو پـه قـاموس کـي نسـته
سـتورې دامـه منـه کـه ښکلي څـومره ژمنـي کـوي

ډاکټر عبدالروف رفیقي

# د ګوره زامن

## په افغانستان کي په لومړي، دوهم او دریم افغان انګلیس جنګونو کي د وژل شوو انګریزانو احوال

(پنځمه برخه)

موسس د چا په نامه چي دا نړۍ واله خپرندویه ټولنه خپروني لري لمسی وو.

دی د هند په مرادآباد کي په ۱۸۳۸م کي وزیږېدی او د برطانیې په ایډنبرګ اکاډمي کي ئې زدکړي تر لاسه کړې، چي هغه وخت ئې ډاکتر هارون ریکټر وو؛ څوک چي ډېر خوله ور او د لاطیني ژبي تکړه عالم وو، له وروسته ئې په لیتهن روډ ایډنبرګ کي په ملټري اکاډمي کي له کپتان اور څخه زدکړي تر لاسه کړې له دغه ځایونو له بریالیو زدکړو پس ده د ځان لپاره په بنګال سروسز کي د آرټلري په څانګه کي کار غوره کړ.



مېجر جارج فریډرک بلیک ووډ
Major G. F. Blackwood
ROYAL HORSE ARTILLERY

دی د برطانوي ځواک د بنګال آرمي د مېجر ویلیم بلیک دوهم زوی وو او د نامتو خپرندویه ټولني د

په دسمبر ۱۸۵۷کي دی په برطانوي ځواک کي ګزټیډ لیفټیننټ وټاکی بمبۍ ته د رارسېدو سمدستي پس وده ته په جنګ کي د برخي اخیستلو امر وشو او د لیفټیننټ کرنل ویلکینسن تر قوماندې لاندي د

۴۲رائل هائي لينډرز سره په روهيلکنډ کي يو ځاي شو.

له ۱۸۵۹م تر ۱۸۶۲م پوري ئې په بريلي او ګواليار کي خدمتونه تر سره کړه له نوامبر ۱۸۶۲م تر دسمبر ۱۸۶۳م پوري د۲۲ برګيډ معاون وو، بيا د ستمبر ۱۸۶۳م پوري د ۱۹ برګيډ معاون وو، چي په ۱۸۶۷م کي ئې ترفيع وشوه.

دا ډېره د ويار خبره وه چي د۱۸۷۱م په مني کي په يو شمير لوړ رتبه ماموران کي د مګدلې لارډ نيپئر کپتان بليک وډ د برګيډئير جنرال بورچر په مشري کي د لشي دبريد لپاره د انفنټري قوماندان وټاکی، تر نوامبر ۱۸۷۱م دی دلته پر محاربه،تپي مخ، کونينګ او تيکوني کي وو، دلته ئې هم زړورتيا ښکاره کړه او تر مارچ ۱۸۷۲ پوري ئې ځان د نيپئر غوره چوپ ثابت کړ، چي ستاينه ئې جنرال بروچر د۲۹ مارچ ۱۸۷۲م په يوه ليک کي هم وکړه.

په ۱۸۷۶م کي بيا ترفيع وشوه او په هند کي د لوی اپريشن کولو کي ئې خدمات و برطانوي ځواک ته وسپارل شوه.

په فروري۱۸۷۸م کي د کيمبرج د ډيوک له خوا د خپلي ټولۍ مشر توب وروسپارل شو، په دا شپږ کي ئې صحت ډير خراب شو دا ضروري وګڼل شوه، چي برطانيې ته ولېږل شي خو داسي ونه شوه، د دغه کال په می کي په افغانستان کي وجنګ ته وګمارل شو، د جنرال رابرټ سره کورم ته راغلی، په جنوري ۱۸۸۰م کي د نورو نظامي خدماتو لپاره د خپلي ټولۍ د مشر په حېثيت کندهار ته ولېږل شو په ۱۴ جولايي ۱۸۸۰م ئې د جنرال بروس په خونړي اپرېشن کي په

زړه پوري رول ولوباوه چي جنرام پرايم روز ئې هم ستاينه کړې ده، په ۲۷جولايي ۱۸۸۰م مېجر بليک د مېوند په خونړي جنګ کي د جنرال بروس سره مل د خپلي آرټلري د يوه سينئر غړي په حيث په جنګ اخته وو يوې خواته دانګريزي تيري کونکي ځواک پر مخ تللي تاکتيکونه او وبلې خواته د مېوند پر ميدان د ملالي سوي کوکي:

که په ميوند کي شيهد نه شوې
خدايږو لاليه بې ننګۍ ته دي ساتينه

مخامخ دست په دست جنګ ...دتکبير دنعرو ږوږ او د انګرېزانو کوکي او غرغرې....په دغه وخت کي بليک هم د خپلو سلهاو ملګرو په څېر د پښتنو غازيانو تر لاس تېر شو. ( The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p20-22.



برګيډئير جنرل هنري فرانسس بروک
Brigadier General H. F. Brooke
Commdg 2nd Infantry Brigade Kandahar Field Force

هنري فرانسس بروک د جارج او مېرمن اربيلا مشري زوی وو، په ۱۳ اگست ۱۸۳۶م وزېږېدی، په اتلس کلنۍ کي په جون ۱۸۵۴ کي په برطانوي ځواک کي گزتير و تاکل شو په ۲۱ اپرېل ۱۸۵۵ع د ۵۴ پياده ځواک د رجمنټ سره کريميا ته ولاړی او د سبټوپول په نيولو کي د دغه رجمنټ سره ورسره وو، پر دغه ئې و ده ته ترکش مډال ورکړی، په ۱۸۶۰ع کي د چاينا په بشپړه کمپاين کي د سر لابرټ نيپئر سره د کومکي په ډول ملگری وو، د تنگکو ښار د تکو د کلا د نيولو پر وخت ډېر بد ټپي شو او د پيکو تر تسليمېدو پوري ورته پر وړه وجنگېدی، د ده د دغه خدمتونو په ستاينه کي وده ته د مېجر رتبه او دوې تمغې ورکړل شوې.

په چاينا کي د سر رابرټ نيپئر سره د خدمت تر څنگ هنري فرانسس بروک دخپل نظامي پرمختگ لاري چاري هم پرمخ بېولې.

ده دخپلي ډلي د قوماندې په خاطر دبمبۍ آرمي دايډجواينټ جنرل رتبه چي تر دې ډېره آسانه او آرامه وه هم تر څه وخته قبوله نه کړه، دی په ۲۳ اپرېل ۱۸۸۰ کندهار ته راورسېدی او دجنوبي کندهار دگريژن قومانده ئې تر لاسه کړه، چي تر دغه وخته د چيف کمانډر جنرل پريمورز سره ورسره وه، بروک لومړی خو د خپلي قوماندې لاندي عسکرو او بيا داړونده چارو جاج واخيست او وروسته ئې د خپلو سنگرونو د پياوړو کولو لپاره جدي گامونه پورته کړه، خو جنرال باروز دومره بوديجه نه درلوده، چي له ده سره ئې دا ډول کومک کړی وای.

ده بل يو دا کار وکړ چي په ښار کي ئې تر پنځلسو ميلو پوري شاوخوا سيمه شناخته کړه، سهار وختي به له دو درو ساتندويانو سره رارهي شو د شاوخوا په کلو کي به گرځېدی داولس ستونزي به ئې ځان ته معلومولې، د اولسي خلگو سره ئې اړيکي ټينگي کړې، ښار تر دا وخته د ټرانسپورټ له لحاظه ډېر شاته پاته وو، کږې وږې لاري، څرکان نه وه، د ده دغه کارونو دوام درلودی، چي ښار ته د ايوب خان ملاتړي غازيان راورسېده او اولس ئې خورا تود ملاتړ وکړ.

په جولايي ځيني پښتانه په خالي لاسو کوتل مورچې ته وختل او د بروک او ميجر آډم پر لښکر ئې په ډبرو بريد وکړ په نتيجه کي ئې د انکرېزانو يو آس ووژل شو. په دې حال کي ښار ته دميوند د پېښو احوال راورسېدی د انگريزي لښکر غړي وتښتېدل او د جنرال بروک د نظامي تجربې څخه کاراخيستل نورهم اړين شو. د غوښتل چي ميوند ته خپل ځيني عسکر ورورسوي، خو وده ته د کوکرانو څخه پر مخ د تېرېدو اجازه ورنه کړل شوه او ماپښين ته بيرته دی د کندهار ښار ته راورسېدی، ځيني ملگرو ئې خپل شيان پرې ايښي پر تېښته مجبوره وه، جنرال بروک بيرته خپل تيت او پرک رجمنټ سره رايو ځای کړ او د خپلو عسکرو د حوصلې او مورال په بيرته لوړولو کي بريالی شو، خو د ميوند له پېښو رامنځ ته شوې وارخطايي ئې په ملگرو کي هغسي خوره وه، په دا سهار نور پښتانه غازيان راورسېده او بيا ئې د بروک پر لښکر بريد وکړ. دلته د جنرال بروز او جنرال بروک تر منځ پر نظامي تاکتيک څه لانجه پېښه شوه، جنرال بروز ځيني رهي شو او جنرال بروک ئې يواځي پرېښووی. په ۱۵ اگست ۱۸۸۰ و جنرال بروک ته امر وشو، چي د شپې دي د غازيانو پر لښکر بريد وکړي خو بروک زړه نازړه وو، چي له کندهاره به سر سلامت نه يو سم که نه؟. ده خواجه د غازيانو په لاس کي وه نښتي رواني

وي په ۱۶ اگست ۱۸۸۰ع جنرال بروک د خپل ټپي شوي کپتان کروک شینیک دجګړې له منځه را ایستلو لپاره هڅه وکړه چې بریالی شو او کروک شینیک ئې له جګړې له منځه را ویستی او مخ پر کابل دروازه رهي شو، چې د غازیانو لاس پر بر شو او د مردکو شلک ئې پر وکړ، د برګیډئیر جنرال هنري فرانسس بروک تر سینه ئې پوري وري ګولۍ ور وایستې. د ۱۶ اګست ۱۸۸۰ع شپه دانګریزي لښکر لپاره دغم شپه وه، چې د لښکر سر ئې خوړلی وو او د پښتنو لپاره د اختر چې د دښمن ملا ئې غوڅه ورماته کړې وه. (p24-26.The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2)



مېجر هانري جارج بچر

MajorH. G. Becher

11thBENGAL N.I. (PIONEERS)

هانري جارج بچر د ۱۸۵۷م دهند د ازادۍ په جنګ کي د برطانوي نظامي قواوو له خوا برخه لرل او وده ته په دغه جنګ کي پر غوره رول ادا کولو مډال هم ورکړل شو.

په فوځ کي د کمیشن اخیستلو پس ئې په ۱۸۶۰م کي دسیکیم په جنګ کي دکولي کروپس ټولۍ او ټرانسپورټ مشر توب په غاړه وو، له دې پس ئې په ۱۸۶۴م کي د بوټان په کمپاین کي په ۱۱ رجمنټ بنګال انفنټري کي برخه لرل او په دغه جنګ کي ئې هم ده ته مډال ورکړ، بیا ئې په ۱۹۶۸م کي دابي سینا په جنګ کي د ټرین او ټرانسپورټ افیسر په توګه برخه واخیسته دلته ئې بیا پر غوره خدماتودریم مډال ورکړې. بیائې په دوهم افغان انګلیس جنګ کي په کوهاټ د ۱۱ بي این آیي برطانوي ځواکونو سره برخه لرل.

بچر د پیواړ کوتل او بین خېل پوري په څېښو کي د خپل ګریژن سره برخه لرل تر څو تر کورم پوري ورسېدل

د ۱۸۷۹م په مني کي د رجمنټ سره علي خېل ته ولاړ، د پښتني خاوري موسم برید پر وکړ سخت ناروغه شو او په ۲۶ اکتوبر ۱۸۸۰ ئې ساه ورکړه.

د ده د رتبو نېټه بنود په دا ډول دئ:

برطانوي ځواک ته راتګ ۶جنوري ۱۸۵۹

لیفټیننټ ۶دسمبر ۱۸۵۹

کپتان ۱۲جنوري ۱۸۷۱

مېجر ۶جنوري ۱۸۷۹. (The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p15.



لیفټیننټ ویلیم هنري بشپ:

Lieutenant W. H. Bishop

2nd BATTALION 11Th (NORTSHIRE) REGIMENT

دی د ویلیم لوئیس موشیم بشپ مشر زوی وو، د ده پلار هم د برطانوي نظامي ځواک په ۴۶ بنګال نیټیو انفنټري کې کپتان وو، په ۹ جولایي ۱۸۵۷م په هند کې د خلګو له خوا هغه وخت ووژل شو، کله چې ده په سیالکوټ کې د۴۶ بنګال انفنټري د برګیډ میجر په حیث دنده تر سره کول، هغه وخت له ده سره خپل دوه زامن او میرمن هم ورسره وه.

ویلیم هنري بشپ په ۲۸جون ۱۸۵۵م وزیږېدی، خپلي لومړنی زدکړي ئې په بلیک هیت کي تر سره کړې د شپاړسو کلونو په عمر کې ئې په بون کې پرائیویټ زدکړي هم تر لاسه کړې او بیا ئې په کراون بروک کینټ کې د ملکې الزبت په ګرائمر سکول کې زدکړي وکړې. د کر کروندې په ځینو ازموینو کې د بریالیتوب پس په جنوري ۱۸۷۳م کي په سیر نسسټر کي په زرعي کالج کي داخل شو، خو د دغه کال په دسمبر کې د ده د اروابناد پلار د غوره خدمتونو په ستاینه وده ته په برطانوي نظامي ځواک کي د اندېین کیډټ رتبه ورکړل شوه. په ۱۸۷۴کي ئې د امتحان پاس کړی او په ۱۷ اپرېل ۱۸۷۴ مدی د لومړي بټالین په ۱۱فوټ کي یو ګزټډ سب لیفټیننټ منل شو، د خارجي ماموریت سره د بلتیا په خاطر ده څو میاشتي د ۲ بټالین د رجمنټ سره تیري کړې بیا څه وخت د بمبۍ په ریزیډنسي کي وو چي په اکتوبر ۱۸۷۴کي وهیډ کوټر ته د تلو امر ورته وشو، په ستمبر ۱۸۷۶ کي لیفټیننټ شو، تر دو کلونو د خپل رجمنټ ویاند هم وو، و دغه رجمنټ ته په جولایي ۱۸۸۰م کي و افغانستان ته د تلو امر اشو، د دوبي په سره ځیله کي د بولان تر تورو غرونو راتېر شو دلته بیا د پښتنو غازیانو د ګولیو د برید له مخه د پښتني خاوري موسم برید پر وکړ سخت ناروغه شو او په ۲۳ نوامبر ۱۸۸۰م ئې په کندهار کي ساه ورکړه. (The Afghan Campaigns of 1878- 1880 (Vol.2 p19.

نور بیا...

سرداروليي پښتون زوی

# کوټه؛ د کندهار هېره فرهنګي حوزه

(څوارلسمه او ددې لړۍ وروستۍ برخه)

د امیر عبدالرحمن خان له مرګ وروسته برتانوي حکومت په ۱۹۰۱ع کال نوي امیر ته لیک واستوه چې دی به د خپل پلار په سیاسي پالیسي عمل کوي، وایسرا [لارډ کرزن] سمدلاسه هغه هند ته ور وباله چې پخوانۍ لوظنامې نوي کړي.

امیر د دې اړتیا نه لیدله او د سفر نه ئې معذورت وغوښت، کرزن په ۱۹۰۲ع کال کې بل لیک ور ولېږه او غوښتنه ئې وکړه، چې د دواړو ملکونو تر منځ د اړیکو د بنه کولو لپاره نوی تړون اړین دئ، هغه د انګریز لیک ته ځواب ورکړ، چې د ۱۸۸۰ع کال د دوهم افغان جنګ تړون پر ځای دئ د نورو اړتیا نه لیدل کېږي، په دې جواب انګریزانو داسې وګڼل چې امیر لکه چې د روسانو سره پټې معاملې کوي.

په یو بل لیک کې انګرېز ټینګار وکړ چې خبرې اړینې دي، ځکه امیر عبدالرحمن هر تړون ته د برطانې مخالف مانا ورکوله، اوس دوی ځان پوهول غواړي چې نوی امیر ورته څه مانا ورکوي. د ګندمک او ډیورنډ لوظنامو کې برطانیې د افغانستان امیر ته په شخصي حیثیت کلنۍ روپۍ (سبسیډي) ورکولې چې د بهرنۍ حملې پر وخت ئې وکاروي.

کله چې د امیر د اوږدې بې غورۍ پر بنسټ انګرېز خپله کلنۍ مرسته ودروله؛ امیر ئې وارخطا کړ، ځکه چې د امیر بې خرته مصارف له شخصي بودیجې څخه نه پوره کېدل.

امیر سمدلاسه دوه لیکونه هند ته ولېږل او د انګریزانو د رویې نه ئې سخته ګیله وکړه، چې نوي امیر ته ئې د خپل ملک د چارو سمبالولو موقع ور نکړه او هغه ئې هند ته وباله. بله دا چې که د انګلستان د ملکې وکټوریه په مړینه د هغې تول تړونونه بیا نه تصویب کېږي نو زما د پلار تړون ولي بیا لاسلیک سي؟ که داسې ده نو افغانستان خپلواک دئ، چې روسانو سره پخپله خوښه تړون وکړي، تر ټولو مهمه خبره ئې دا ولیکله چې که د برتانیې سره د افغانستان ټول تړونونه شخصي وي نو بیا د ډیورنډ تړون هم هیڅ مانا نه لري[۲].

امیر حبیب الله خان د خپلو سلاکارانو په مشوره، د روس او برتانیې دواړو سره یو ډول چلند غوښت چې په هغه وخت کې دا خورا ګران کار وو.

---

۲ پښتون، افغان، افغانستان، پوهاند ډاکټر حسن کاکړ(جرمنی: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، ۲۰۱۱ع کال)

پـه ۱۹۰۳ع کـال کـې د برتـانيې او روس تـر مـنځ اړيکي ښې سوې او د بل کال په پيل کې امير حبيب الله پخپـل دربـار کـې دانګريز استازي [سر لـويس ويلـيم ډين ] هر کلی وکړ. د انګريز په اجنډا کې د روس خبره مهمه وه نو ځکه ئې يو کلک تړون تـه لاره هوارولـه، پـه خبرو کې څو مياشتي تيري سوې او اميـر حبيـب الله، لـويس ډيـن تـه وويـل چـې خبـري بـه د افغانسـتان پـه شـرايطو وي. دغـه تـړون د [ډيـن حبيـب الله تـړون ] نـومېږي. پـه دې ډول برتـانيې لـه افغانسـتان څخـه بنديزونه ليري کړل، د پيسو ورکولو وعده ئې وکړه او ډيورنډ ليکه پرخپـل ځـای پاتـه سوه، پـه مـتن کـې دا وضاحت نسته چې دا يو ملي تړون وو او کـه شخصـي؟ انګريـز پـه لـومړي ځـل ده تـه د هـز ميجسـتي (جلالت مآب) وويل چې يوازي ئې خپلو سيالانو تـه ويـل، پـه دې تړون انګرېز ته تاوان و نه رسېده، خو دا ورته جوتـه سوه چې افغانستان د روسيې سره ملګرتيـا نـه غـواړي.
وروسـتـه تـر حبيـب الله خـان د هغـه زوی اميـر امـان الله خـان د انګلـيس بـې اجـازې ۱۹۱۹ع کـال کـې خپلـه کابينه اعلان کړه او پر ملت ئې ږغ وکړ چې د خپلواکی لپاره ئې مـلا وتړي، يوه ورځ وروسـته د کابـل ښـار پـه زرګونو ښـاريانو د حبيبـې د ښوونځی لـه زده کوونکو سره يوځای د انګليسي سفارت تر مخ لاريون وکړ او د انګليس په وړاندي ئې ږغونه پورته کړل، شاه امان الله د انګليس ضد خپلواک سياست او تګلاري په راخپلولو سـره ورځ پـه ورځ د وګـړو پـه زړونـو کـې درونـد ځـای وموند او د دغه ګرانښت لـه املـه ئې افغانـانو هـم دغي غوښتني ته مثبت ځواب ووايه او د ۱۹۱۹ع کـال د مـی تـر ۳ نېټـې پـوري يـو ۶۰ زريـز ځـواک تيـار کـړ، چـې د دښمن د ۳۲۰ زرو بيا ۷۵۰ زرو روزل سوو سرتيرو چې ۱۸۵ تر ۴۵۰ زرو باروړنکي ځاروي ئې مـل ول، مقابلـه وکړي[۳]. دې وخت کې انګرېزي قواوي د افغانستان پر

---

[۳] يو انګرېزي مقاله په دې اړه ليکلي:

"د سپاره پوځ دوولسم غونډ: درې سپاره هندوستاني کنډکـه او يـوه ټولۍ ماشيګن لرونکي سپاره.

يوکنډک هندوستاني سپاره، د R.F.A يـوه بطريـه، دوې د R.G.A د کوټې څلورمه فرقه: غرنۍ بطريې، دوې پلي انګرېزی لېـواوي، نهـه پلي هندوستانۍ لېواوي او دشاهي هوايي پوځ يـوه الوتکـه. کـورنی لښـکر: غرنـی هندوسـتانی بطريـه، دموتورماشـيګنو يـوه بطريـه، يوکنډک هندوستاني سپاره اويـوه پلـې هندوسـتانی لېـوا. دپـارس پـرختيځ کمربنـد بانـدي ترقومانـدې لانـدي ځواکونـه: يوکنـډک هندوستاني سپاره، درې پلي هندوستانۍ لېـواوي، يـوه لارښـوونکې لېـوا. فـورټ سـنډېمن(ږوب): يـوه پلـې هندوسـتانی لېـوا، پـه پنځوپوستوکي خپره سوې، دږوب ۱۲۰۰ کسيزه مليشا، دهرنـايي يـوه پلې هندوستانۍ لېوا، دلورلايي يوکنډک هندوستاني سپاره، د هغـوتر څنګ په اتو بېلا بېلو پوستو کي يـوه خپـره سـوې هندوسـتانی پلـې لېوا. دغوقوتونو ته دمې دمياشتي له ۱۴ څخه دجون تراوومي پـوري دغه ملاتړي ځواکونه هم ولېږل سول :

دوه کنډکـه هندوسـتاني سـپاره، دوې R.F.A بطريـې، يـوه ټـولی ماشيګن والا، يوه پلي انګرېزي لېوا، يـوه پلـې هندوسـتانیلېوا، يـوه لارښوونکې لېـوا، دکـورني امنيـت درې پـلي هندوسـتانی لېـواوي. دمې دمياشتي په سرکي انګرېزي حکومت پر پوله باندي پرتو قطعاتو نوي چمن او عبدالله خان کلا ته نور ملاتړي ځواکونه، چـې پنجـابي او ګورکه غونډونه پکښې وه، ولېږل .

دمی دمياشتي تر۱۵ پوري د کندهار لـه لـوري دلښـکرو د خوځېـدو اطلاعات نه وه. د نـوي چمـن پـه اڅکـزو او کـاکړو کـې نـا ارامـی موجـوده وه. دبلوچستان پـوځ وپتېيلـه چـې پـه سـپين بولـدک AFGHANISTAN 1919 کي پر افغاني تانه باندي يرغل وکـړي" .و ګورئ.



د سپین بولدک جنګي کلا: بولدک د کندهار ختیځ ته پراخه اولسوالۍ ده چې د کندهار سړک ته نږدې یوه لویه جنګي کلا لري چې د افغانستان له مهمو کلاوو څخه ګڼل کېږي. د کلا په هر کونج کې یو برج او پر شاوخوا یې خندق واقع وو. د یوالونو یې تیر کښان لرل او جګوالی یې له ۲۶ څخه تر ۳۰ فوټو پورې وو. کلا د مستطیل په شکل وه چې مساحت یې دوه پنځوس مربع متره کېدی. په دغه ګارنیزیون کې د برجانو په ګهون نږدې شپږ سوه تنه منظم پلی پوځ پروت وو. د کلا شاته د میوو د ونو باغچه او د هغو افغانانو قبرونه دي چې انګریزي یرغل پر مهال شهیدان سوي دي. دې سیمې ته یې پخوا اکلای جدید اویل.

سهېل راماتي سوې او د چمن له خوا یې پر بولدک فشار راوړ، په کندهار کې لویناب خوشدل خان والي او سردار عبدالقدوس خان د کندهار د محاذ مشر وو، څنګه چې قدوس خان له کابل څخه لا نه وو رارسېدلئ انګرېز پر بولدک کلا (دې وخت کې قلعه جدید بلل کېده) برید وکړ، د بولدک په کلا کې ۳۰۰ عسکرو د ټولي مشر محمدیوسف خان[4] په مشرتوب د بولدک ساتنه کوله، خو د کندهار څخه خوشدل خان قوه وَر وه نه لېږل، ډېری افغان عسکر مړه او زخمیان سول، انګرېزان په داسې حالت کې د بولدک کلا ته ننوتل چې محمدیوسف خان د کوما په حالت کې وو، وروسته امان الله خان غوښتل خوشدل خان اعدام کړي، خو دائې ماما وو او مور ئې د هغه د خلاصولو لار برابره کړه.

کله چې دغه حال کندهار ته ورسېد د بېلابېلو مشرانو په مشرتوب اولسي لښکر له سپینو بیرغو سره مخ پر بولدک روان سو، یو ګړی وروسته بولدک په افغاني مړونو ډک سو آن تر ډب کلا او انځرګي پورې افغانان د اماده باش په حالت کې د قوماندې په انتظار اوسېدل.

[4] ټولیمشر محمدیوسف خان، چې وروسته په جرنیل محمدیوسف خان باندې یادسوی، دسرتیپ محبوب شاه خان زوی اود کوچي محمد ظریف خان ابراهیم خېل سلیمانخېل لمسی و. ده دسپین بدلدک په مدافعه کې پرسربانډې ټپ واخیست اودزخمیانو په ډله کې د انګرېزانو لاس ته ورغی. د خپلواکۍ د جګړې ترمتارکې وروسته افغاني لورې ته ولېږل سو او د خپلواکۍ ترګټلو وروسته بیرته سپین بولدک ته د (سرحد دار) په توګه د کنډکمشر په رتبه واستول سو. په ۹۳۳٤ ش کال چې امیرامان الله خان کندهارته په تفتیش ولاړ او مجلس مکافات و مجازات یې جوړکړ، دځینو عواملوله امله له کاره ګوښه سو. د نادر شاه دپاچهۍ له پیل څخه بیاترمرګه پورې ئې په کندهارکې دفرقه مشر په توګه وظیفه درلوده او وروته د هماغه ټپ څخه دراپیداسوي ناروغۍ له امله مړ سو او مړی ئې دکندهاردعیدګاه دروازې دباندې د ډنګربابا زیارت ته نږدې په درناوۍ سره خاورو ته وسپارل سو. وایي چې پر قبر ئې شنخته هم سته. دفرقه مشر محمدیوسف خان تر وفات وروسته وزیر محمدګل خان مومند د کندهار د رئیس تنظیمیه په توګه وټاکل سو. وګورئ: د کندهار او سپین بولدک محاذ، استاد معصوم هوتک ۲۰۰٦ع، کاناډا

دانګرېزانو د لښکر مشر پر کوړک باندي په دوربين کي دافغانانو د راتګ او جوش و خروش ننداره کوله چي له سپينو بيرغونو سره په ډلو-ډلو بولدک ته ورسېدل، دلته وو چي دانګرېزانو د جنګ قومندان وارخطا سو چي دا څه حال دئ؟ هغه وو چي بېله ځنډه ئې د هند وايسرا ته دوضعي په باره کي ټلګراف تېر کړ. د هند وايسرا هم فوراً و لندن ته خبر ورکړی، په دې وخت کي دانګرېزانو صدراعظم ګليډ ستون وو، هغه چي دا خبر واورېد سملاسي ئې د هند وايسرا ته امر ورکړی، چي افغانانو موږ ته دوه واړه ماته راکړې ده نو په دې کي هم زموږ ناکامي له ورايه مالومه ده، نو ته دستي متارکه اعلان کړه، هغه وو چي متارکه اعلان سوه او دواړه لښکره دآماده باش په حال کي پاته سول [٥].

په دې ډول شاه امان الله د سپېڅلي هيواد پالني او يوژبي مشري تر سيوري لاندي د افغانستان سياسي خپلواکي ترلاسه کړه او يو ځل بيا افغانستان خپل له لاسه تللي نوم او پرتم ترلاسه کړ او د نړۍ د خپلواکو هيوادونو په کتار کي ودرېد.

کله چي د ۱۹۴۷ع کال د جون پر دريمه نېټه د هند د کوچنۍ وچي د سره وېشلو پلان جوړ سو او تر هغه وروسته هند او پاکستان په دوو هيوادونو کي سره ووېشل سول، انګرېزانو له افغانستانه د نيول سوو سيمو په اړه ددې پرېکړي واک ورکړ چي شمال لوېديځ سرحدي ايالت (اوسنی خيبر پښتونخوا) دي د ټولپوښتني (ريفرنډم) په وسيله او کميشنرۍ صوبه (د برټش بلوچستان پښتني سيمه) دي د شاهي جرګې او د کوټي د ښاري کمېټې (ميونسپل کمېټۍ) په وسيله يا په پاکستان ګډه سي او يا دي په هند کي پاته سي. له بده مرغه په کانګرس او مسلم ليګ ګوندونو کي د پښتنو د ملي خپلواکۍ د نه يادولو او د پښتنو د استازي ګوند د نستوالي له امله انګرېزانو د دغو مستعمره سيمو خلکو ته د خپلي خپلواکۍ لپاره دريمه متبادله لاره او خوښه ور نه کړه او پښتنو ته ئې واک ور نه کړ چي دوی بيرته يا پخپل اصلي تاريخي وطن افغانستان ګډ سي او يا خپل يو بېل خپلواک هيواد جوړ کړي، که څه هم چي خان شهيد عبدالصمدخان اڅکزي په ۱۹۴۵ع کال کي خپل ملګري باچاخان ته يو ليک هم ور لېږلی وو او په هغه کي ئې ورته ليکلي وه، چي له برتانوي حکومت او کانګرس څخه بايد وغواړي چي د برتانوي هند له خوا مستعمره پښتني سيمي بايد په هند ګډي نه کړي او د پښتونستان په نامه د يوه بيل خپلواک هيواد غوښتنه څني وکړي، خو داسي ونه سول او د پښتنو مستعمره سيمي په پاکستان ګډي سوې.

دې لويو ملنډو افغانستان ته داسي ټکان ورکړ چي تاريخي سابقه ئې نه درلودل، افغانستان تر برتانيوي سيوري لاندي اقتصادي کمزوری او سياسي يوازي وساتل سو او باچاخان دومره په مځکني تماميت کي بوخت سو، چي انکشاف لپاره ئې کافي وخت نه کړ پيدا، بله خوا زموږ د خلکو د کم سياسي شعور، خپل منځي شخړو، نالوستي توب، ملوک الطوايفيو او قومي تيکه داريو لا هم موږ دې ته نه پرېږدي چي خپله خاوره تر لاسه کړو، دا مقاله د کوټي د مظلومو پښتو په دې غاړه پای ته رسوم:

خدای دي غرق کړي فرنګيان
پر ميان ئې بېل کړه افغانان

[٥] کندهار د تاريخ په اوږدو کي؛ د مقالو ټوګله، د حاجي بابا مصروف ليکنه (کندهار: اطلاعات و کلتور رياست، ۱۳۸۴هـ).

صدیق الله عظیمي

# خرقه شریفه د تاریخ په اوږدو کې

## (د خرقې شریفې اړوند د افغانستان د واکمنانو فرمانونه)

(۵)

د خرقې شریفې اړوند د امیر عبدالرحمن خان کړنې:

امیر عبدالرحمن خان په داسې وخت کې واک ته ورسېدی، چې هیواد د انګرېزانو د دوهم یرغل په پایله کې ډېر سخت زیانمن سوی وو. په دې مانا، چې د اداري منظمه دستګاه خوره وره او پوځي جوړښت له منځه تللی وو. نو امیر عبدالرحمن خان هم د دولت د له منځه تللو جوړښتونو پر بیارغونه لاس پورې کړ. دا چې امیر عبدالرحمن خان ډېرسخت ګیر او سخت زړی انسان وو، نو په هیواد کې د ننه ئې دوه ګوني پروګرامونه رامنځ ته کړل، چې یو په فیوډالي شرایطو کې د مطلق العنانې یا ځان غوښتني مرکزي دولت رامنځته کول وو او بل په ټولنیزو چارو کې ئې ډول ـ ډول اصلاحات وه. امیر خپل دغه پروګرام په ډېره چټکتیا په هیواد کې عملي او پلي کړل او پر خلګو د منلو پر مهال ئې هیڅ ډول اخلاقي بندیزونه په پام کې ونه نیول.

امیر عبدالرحمن خان په ډېره اسانۍ سره په کندهار او هرات برې ترلاسه کړ او د کندهار په ښار کې ئې ملا عبدالرحیم، ملا عبدالاحد او پنځه تنه نور ملایان د دود بر خلاف د خرقې شریفې له ودانۍ څخه را وایستل او په خیل مخ کې ئې اعدام کړل.

سر بېره پر دې امیر عبدالرحمن خان د خرقې شریفې ودانۍ چې د مجرمینو د پناه اخیستنې ځای وو، ونړوله او د دغې پناه اخیستونکی د سردار عبدالله خان ورور محمد یوسف خان ئې وواژه.

د خرقې شریفې اړوند د غازي امان الله خان فرمان:

غازي امان الله خان که څه هم یو متدین او پر دین مین شخص وو د خرقې شریفې اړوند ئې کوم خاص فرمان نه دې ورکړی، خو د هر سفر مخکې او وروسته به د خرقې شریفې و زیارت او احترام ته راتله او بیانونه به ئې ورکول، غازي امان الله خان په (۱۳۰۴) شمسي کال د مېزان پر ۱۸ مطابق ۱۱ داکتوبر (۱۹۲۵) دکابل څخه وکندهار ته حرکت وکړ او د دوشنبې په ورځ دمیزان پر ۱۹ وټولو کندهاریانو ته دخرقې شریفې په مسجد کې خپله ویناداسې واورول:

«لکه څنګه چې تاسې ته معلومه ده چې زه د وطن دخدمت څخه اضافه مینه او محبت د هیڅ شي سره نه لرم، داد ځان او ټول افغانستان دګران ولس دښې راتلونکي لپاره یو ښه طریقه بولم، چې هر یو د افغانستان د راتلونکي نسل لپاره دوطن دابآدۍ او پراختیا لپاره د هیڅ ډول خدمت څخه مخ وانهړوي. سربېره پردې چې په دغو ورځو کې مې د مرکز او نورو ولایتونو د سرکښۍ څخه خاطر جمع دئ.

عزیزانو: لکه څنګه چې تاسو ټوله پوهېږئ، چې زما دراتلو مقصد دکندهار تاریخي ولایت ته تفریح او

ساعت تېری نه دئ، بلکې کندهار یو برکتناک او مقدس ځای د افغانستان د ولایتونو څخه شمېرل کېږي نو ماهم دخرقې شریفې زیارت په نښه نیت نیولي وو، چې لوی مقصد مې هم دخرقې شریفې او ستاسي سره ملاقات وو چې دخرقې شریفې دزیارت په صحن کې دګرانو کندهاریانو وروڼو معلومات ځانته حاصل کړم.»

کله چې غازي امان الله خان کندهار ته خپل سفرونه زیات کړل نو په تعقیب ئې څو جمعې لمونځونه په خرقه شریفه کې په داسې ډول وکړل، چې د امامت او خطبې اداء کونکی وو، غازي امان الله خان په لومړۍ جمعه کې په مسجد کې دپنځو لمنځو نو په ادا کولو سره ټینګار وکړ او هم ئې وویل چې داسلام په ارکانو کې مهم رکن په مال او ځان جهاد دئ، په دوهمه جمعه کې ئې خلګوته داتفاق او اتحاد په راوستلو ټینګار وکړ، په دریمه جمعه کې ئې د اسلام او علم په باره کې خبرې وکړې او هم ئې وویل چې زموږ قوانین دالله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ دارشاداتو مطابق جوړ سوی دئ او هم ئې وویل چې دعلم او عرفان پواسته یوازې نه سوکولای د افغاني ملت د درد دوا سو بلکې دموجوده جهان دترقې او تعلقاتوسره اشناکیږو، په څلورمه جمعه کې د امیر امان الله خان بیان دجهاد په اړه وو او هم ئې خلګ په خپله خطبه کې عسکري خدمت ته وهڅول.

**خرقې شریفې ته د علامه اقبال راتګ:**

ډاکټر محمداقبال لاهوري دپاکستان ستر متفکر، د اوردو او فارسي ژبو فلسفي شاعر او په لوړو زدکړو سمبال دي، چې په (۱۸۷۷)م کال دپاکستان په لاهور ښار کې په یوه معززه کورنۍ کې زیږېدلی دی، نوموړی په خټه کشمیري او په قام برهمن دئ، داقبال کورنۍ او نیکونه په اولسمه میلادي پیړۍ کې په اسلام مشرف سول همهغه مهال ئې کشمیر پرېښود او پنجاب ته راغلل.

اقبال خپلې زده کړې له جمات څخه شروع، بیا ښوونځي ته ولاړی هلته ئې پوره وړتیا وښودل وروسته ئې دلاهور پوهنتون څخه په فلسفه کې ماسټري ترلاسه کړه. (صفا،۲۱۲)

علامه اقبال په (۱۹۳۳)م کال دکابل پوهنتون دجوړېدو په مناسبت دنادرشاه په بلنه کابل ته رسمي سفر وکړ او د افغانستان د لوړو او پوهنتوني زده کړو په سیسټم کې ئې افغاني بادشاه نادرشاه ته ګټوري مشورې ورکړې او د همدغه کال د عقرب په میاشت کې د کابل څخه کندهار ته راغلی، چې د خرقې شریفې په زیارت مشرف سو، په دغه جریان کې ئې د خرقې شریفې داحترام په خاطر وویل:

قندهارآن کشور مینوسواد
اهل دل راخاک اوخاک مراد
کوي آن شهر است مارا کوي دوست
ساربان بربندمحمل سوي دوست
خرقه آن برزخ لایبغیان
دیدمش درنکته (لي خرقتان)
آمدازپیراهن او بوي
دادمار انعره الله هو
(وکیلي،ص،۱۱)

عصمت الله زهیر

# د عطایي په اوښکو لمبېدلی تصویر



دا هم یو عجیبه غوندي حالت دئ یو مستند نقاد به ډېر زیات وکړوي، چي عطایي صاحب پر خپله شاعري هیڅ ډول تبصره نکوله نه ئې خپل شاعرانه شان پامولو....

د خپل روزګار او خپل شخصیت په رنځ رنځور نقاد ته مشکل دا جوړ دئ، چي د عطایي صاحب د شعر محتوا ته لوېدلی نسي.

زه په دې اعتراف کولو کوم باک نکوم یو لوی ادبي اعزاز ئې ګنم، چي ماته ئې د زړه مینه راکړې ده هم تر (ډېرو) ډېر نژدې ورسره یو څه موده پاته سوی یم، لاکن ما عطایي صاحب بشپړه پېژندلی نه دئ او د شعر په سیند ئې ځان لاهو کول زما ملنګ د وس خبره کله ده....

هو! عطایي صاحب د یو ناقراري، مضطربي او لړزاندي روح لرونکی څوک دئ، هر وخت په یو اضطرابي او د تلوسې په حالت کي وي، تر سترګو به ئې یو ډول حسرت، دلسوزي او غمګیني راڅڅېږي، د ساړه اه له درده به ئې د حجرې دېوالونه هم ژړانده وو...

کله - کله چي ئې د څینو بیتونو سره مخامخ کیږم او د عطایي صاحب دلسوزي، دلتنګي او جلال راته تصویر سي لکه نیم بسمل د خپل زړه په وینو کي وتپېږم.

د روژې یو ماخستن چي سمدم د درد او حیرت (بېزارۍ نه) په حالت کي ناست وو د (پوهنتون د درېیم کال) یو څو بیتونه مي ورته یاد کړو ....نور ئې درد په حسرت او حیرت ئې په اوښکو بدل سو، د بیتو تر اورېدلو وروسته چي مي خپل ماخذ ورته روښانه کړ، نور نو زه د اوښکو نه تهم کېدونکي سیلاب ته مخامخ وم....

په تېرو پرونیو کندوالو کي پاته سوې (هېره سوې) کیسه مي ورته رااخستې وه، د ماضي یوه داسي پاڼه مي اړولې وه، چي دردونو پکښي سلګۍ وهلې او وختونو د حسرتونو مړي پکښي نڅول، د وخت د تېرېدو سره ژور سوي تپونو غلبلې پکښي وهلې. لاکن مینه د کمال څخه خپل تکمیل ته پکښي رسېدله.

یو مهم ټکی دا چي په لومړي ځل د سېکس او میني تر منځ توپیر په بشپړه توګه راته څرګند سو، د میني او حسن د یوه نوي کیفیت سره په لومړي ځل اشنا سوم چي مینه جسماني نه روحاني اړتیا ده او د روح په تشنګي کي د حسن اصل جوهر پروت دی یا د پروفېسر راز په قول:

خدای ته به پر اوړدو لارو (شاعرانه لارو) ورځو.

د عطایي صاحب په وینا:

بيا بې ګورو چې شيخ څنګه؟ لنډوي د جنت لاره

ستا مستي يې په سر بار کړه، زما جنون يې زولانه کړه

يومست، سر کښ د جلالي مزاج درويش، د نوم نمايش او خودنمايي بېزاره، په يوازيتوب کې د فقيرۍ ډک ژوند تېرونکی، چې د خپل عصر يو دردونکې هم ځانګړې د سرکښو هيلو برخمنه يوه داسې نغمه ئې چېړلې ده، چې د غاصبانو په غضبونو تندري راپرېباسي، د پايکوبو په اتڼ کې کونګيانو ته د ژبې د جرئت توان ور په برخه کوي، د حسين د لښکر په ډاګه ملګري کوي ....

دا هم يو حقيقت دئ، چې ادبي مافيا عطايي صاحب د خپلو ګټو او شرُت لپاره لوی زيان پامولو هم ئې پاموي:

يو ميخوار دروُ شهيد کړ، زوړ ساقي سوګند اوچت کړ
که راج راغی د مستانو، دا مزار به ميخانه سي

په حسرت، حيرت او هښتيا کې نغښتی د عطايي صاحب په اوښکو لمبېدلی تصوير مې په زړه کې هر ګړی يو تازه داغ راسره دودېدلی پاته دئ، تر ډېرو ورځو دې ځورېدونکي او کړېدلي کيفيت سره پاتېدل د يوه کړېدلي، ځورېدلي انسان لپاره په وينو کې تر لمبو ځان تېرولو شواخون غواړي ....

ډېري شپې وروسته چې د عطايي صاحب په اوښکو لمبېدلی تصويرمې په سترګو کې رغړېدو اوس مې په روح کې اوسېږي، زه ئې محسوسوم، زه ئې ژغورلی يم په اور او اوبو کې، په مارانو کې خو څنګه؟

کاش ماته يې د اظهار حق حاصل وای ....

ډېري شپې وروسته د نثر په بڼه دا کرښې مې د ذهن د اسمانونو را پور کړې:

د يو چا په اوښکو اوتر سلګې مې

تر زړه وختل

په تاخچه کې وژلی څراغ .

اوس کرار – کرار دودېدو

يو پخوانی زخم

او زه

نور د څراغ سره

يو ځای دودېدو

د دې کرښو تر اظهار وروسته مې له دننه د اضطراب موجونه د اطمنيان غېږ ته خو ولوېدل لاکن زما هغه پوښتنه چې هر څومره جرئت کولو باوجود هم مائې د کولو جرات ونکړو، زما لپاره يو ذهني اضافي وبال وګرځېدو ....

جرئت مې ځکه ونکړای سو، چې شاعر اوس د مينې پيل نه د مينې د وروستي پړاو (تکميل) په منزلو کې دی او د حسن په اوبو د مينې ختې په اخښلو بوخت دئ ....

د عرش څخه فرش ته يو مست درويش را رسول هم مناسب نه ده او زما غوندې ګمراه مريد لپاره خپل وزرونه سوځول هم په وس کې د ننه خبره نه وه ....

بيا خو عطايي صاحب د ځينو رازونو راز پاتکېدل هم غواړي:

پر هر پټ ساته زړګيه چې مې روح لا خبر نسي
عشق مقام دخود دارۍ دی دلته آه هم رسوايي ده

داسې ډېري پوښتنې د عطايي صاحب په اړه په خپل ذهن کې لرم چې د وخت سره به ئې مطرح هم کړم که نه خو نن چې مې (د مينې او حسن معتکف شاعر) کتاب کې پر دې بيت نظر ولګېدو ماته زما د يوې ځورېدونکې پوښتنې جواب د عطايي صاحب په اړه د عطايي صاحب په دې بيت کې ورسېدو:

ځواني ولاړه شهي راغله، اوس به څه ګلان کړمه
چې نصيب مې مستي نه وي، وخت او بخت يې تېر او بېروي

احمدالله محمدي

# د اروانباد استاد غلام محمد خان لنډ ژوند لیک

اروانباد استاد غلام محمد خان د حاجي محمد زوی، په ۱۳۲۰ هـ ش کال کي د کندهار د اولي ناحيې د توپخانې په کوڅه کي زيږېدلی دئ. د مرحوم استاد پلار يو دوکاندار وو او اصلاًئې پلار او نيکونه د اروزګان اوسېدونکي وه. اروانباد استاد صاحب په ۱۳۳۹ هـ ش



کال کي د کندهار د احمد شاه بابا عالي لېسې د دولسم ټولګي څخه فارغ سوی او ۱۳۴۶ هـ ش کال کي د کندهار د عالي دارالمعلمين د ساينس له برخي څخه فارغ سوی دئ.

اروانباد استاد په ۱۳۴۳هـ ش کي واده کړی، څلور اولاده ځني پاته سوي، چي درې ئې زامن او يوه ئې لور ده.

اروانباد استاد په ۱۳۸۵ هـ ش کال تقاعد سوئ.

اروانباد استاد غلام محمد خان د دري او پښتو سربېره د انګليسي سره هم بلديت درلود.

خدای بخښلي استاد د کيميا اساسات، عضوي کيميا او د کانکور د آماده ګۍ لپاره کتابونه چاپ کړيدي. دستاينليکونو يو صندوق د خدای بخښلي استاد صاحب څخه پاته سوی دئ، چي په هغه کي د کرزي

صاحب څخه د اولي درجې دوې تقدیر نامې هم شاملې دي.

استاد په واقعي معنی ښوونکی، د نیکو اخلاقو څښتن، د مذهبي، ژبني، دیني او منطقوي تبعیض څخه پاک او سپېڅلی انسان وو او د انسان هغه ټولنیزه دنده چې د الله جل جلاله د ټولو بنده ګانو سره په عامه اصطلاح باندي (راشه درشه) درلودل چې دغه سلوک او رویه د دروند استاد د ژوند د لړلیک لمرنۍ ماده ګڼلای سو.

اروانښاد استاد صاحب په کال ۱۳۹۲/ د عقرب د میاشتي /۲۲ د جمعې په ورځ دور پېښې ناروغۍ له کبله وفات سو او په کندهار کي پخپل پلرنۍ هدیره کي خاورو ته وسپارل سو.



دا چې د اروانښاد استاد ژوند لیک مي ترتیب کړه دلیل ئې دا وو، چې اروانښاد استاد صاحب مي په خوب کي ولیدی چې راته خندله ئې نو ما هم دغه تصمیم ونیوي چې باید لږ تر لږه د استاد د ژوند لیک په اړه معلومات وړاندي کړم. د اروانښاد استاد سره مي فقط ۲ میاشتي شخصي درس ویلي دي لیکن ډېر څه مي ځني زده کړيدي.

اروانښاد استاد غلام محمد خان په لوی کندهار کي د ساینسي مضامینو په ځانګړې توګه د کیمیا او بیولوژي یو تکړه او با استعداده ښوونکی وو. نوموړي همېشه کوښښ کاوه، چي خپله پوهه دخپل هیواد تر بچیانو پوري ور ورسوي.

استاد تقریباً له پنځوسو کلونو راهیسي ډېر ځوانان د پوهي په ګاڼه سمبال کړي اوهغوی ته ئې دهیواد پالني احساس ور کړی دئ.

اروانښاد استاد د یوې بلي شمعي په څېر، ځان سوځولی، خو د پوهي اوعرفان پتنګان ئې پر ځان راټول کړي وه او د پوهي محفل ئې ګرم ساتلی وو.

په نورو هیوادونو کي تر هر چا داستاد امتیازات ډېر وي خو بدبختانه په افغانستان کي برعکس ده، ځکه چې اروانښاد استاد غلام محمد خان خپل ټوله ژوند د استادۍ مقدس خدمت ته وقف کړی وو، خود ژوند تر پای پوري د کرائې په کور کي اوسېدی او بایسکل ئې نقلیه وسیله وه.



استاد غلام محمد خان یو ډېر حلیم، خوش اخلاقه، د ساده لهجې لرونکی، مهربان، سخي، عاجز، پرهیواد او هیوادوالو مین شخصیت وو.

ژباړه: نذیر احمد تائي

# د دولت او ملت پر اړیکو د رشوت اغیز

رشوت یو د مضره عاداتو څخه دئ، چي خلک او بشري ټولنه د نېستۍ او خوارۍ وکندي ته وراچوي.

رشوت یوه لازمي ستمګره ګناه ده.

رشوت هغه جرم دئ، چي تاوان ئې هم د رشوت خور نفس ته رسېږي هم و پاکي او ښایسته انساني ټولني ته.

که موږ د رشوت تاوان ته په غور سره وګورو، نو وینو چي دا جرم څوګرایه تر هر جرم ډېر دروند دئ، حتا تر غلا هم، دا ځکه چي یو غل دیوه معین شخص کور تباه کوي او یوازي هغه کس ته تاوان رسوي، ان رشوتخور ټول وطن او ملت د بربادۍ وکندي ته وراچوي، اوس ګورو چي دابد عادت پرخلګو څرنګه تاثیر کوي او دهغوی د اخلاقي فساد موجب ګرځي؟

پست اخلاق، بده تربیه، ناپوهي چي (دزالت یوه بله منبع ده) د رشوتخور لپاره دغه مضري کړني دي، چي د دې عمل اساسي منشا شمېرل کېږي! یعني هر هغه څوک چي په بده او ناوړه تربیه پخپلو ټیټو اخلاقو سره خپل عزت او شرف د خاورو سره خاوري کوي او د نفس و ذلت ته خاضرېږي او یاد نا پوهۍ (جهالت) له سببه د نسوای سنجولای، نو داجرم (رشوت) یو ډېر بې اهمیته او ساده ښیي؛ یوازنۍ وسیله ئې اغواګري، چل او تېر ایستنه وي؛ نو داشان خلک د اخلاقي خوند څخه بې برخي او دمعنوي ګټي څخه محروم وي؛ نو خود به په مادي لذت او نفس باندي خوړندوي او لکه یو مردار خور حیوان خپل نس (ګېډه) به له هر راز مردارو څخه ډکوي، د حلال او حرام فرق به نسي کړای.

په هر صورت؛ دا اخلاقي پستي (ټیټوالی، دون همتي) په قوم کي زیاته اوښکاره کېږي او دټولني د وژونکي بلا سبب ګرځي، څو د یوه ساري (نقلوونکي) ناروغۍ (مرض) په څېر ټول خلک مسموموي، کرار - کرار دا بلا یوه پېښه ګرځي او نور په اخته کېږي بالاخره درسته ټولنه فاسدوي؛ کټ مټ لومړۍ په تیره بیا دوهمه سقاوي (حبیب الله شاهي) ترې جوړېږي.

رشوت معنی حق اوحقیقت پټول، ناحقه په حق
ښودل او د انصاف او عدالت وژل دي، دمادي ګټې په
غرض خپل نفس په چټلیو (خځلو)سره ککړول او
معنوي شرافت خفه کول، چې آبدي نتیجه ئې تور
مخي او (وخسرالدنیا والاخره) کول دي او بس.

درشوت تاوانونه:

اول: بې اتفاقي او د زړونو لیري والی د دولت
او ملت په مابین کې: رشوت عموماً د دولتي
مامورینو په طبقه کې دخپل واک ښودلو په
غرض رواج مومي، چي پدې حالت کښې د ملت د
رښتینولی، صداقت او باور حس نسبت د دولت
ته کمزوری (ضعیف) کېږي.

دوهم: دولتي قوانینو ته تاوان رسول او د
دولتي حکمونو په صحیح اجراء کې انحراف
کول.

دریم: دمملکت د عمومي پانګي و
اقتصادیت ته تاوان رسول؛ پدې معنی چې
دخپلي شخصي یوې (۱) افغانی لپاره د دولت او
دولتي محصول یا نور څه باندي پر سلو (۱۰۰)
افغانیو سترګي پټول، چي په نتیجه کې رشوت
اخیستونکی او رشوت ورکوونکی دواړه د ملي
خزانې بربادونکي ګڼل کیږي.

څلوم: عامه امنیت ګډوډول او تاواني کول؛
پدې معنی هغه لاسونه چې په قتل، غارت،
شرارت او تاراج ککړوي، همهغه لاسونه د دولت
دنامورینو لخواه یوازي او یوازي د یو څو افغانیو په
بدل کې خوشي کېږي، چي په نتیجه کې د
شریعت او دولت قوانین او سیاست زیانمن او بې
حثیته کیږي او اشرارو (بدکارانو) ته دبیري او
وهم ځای نه پاتیږي.

خو باالاخره باید پدې اعتراف وکړو، چې
رشوت خوړل او ځان و دې پست، رذیل او ټیټ
عمل ته تسلیمول اخلاقي روح، د خلګو مېړانه او
شجاعت وژني او خلګ په دومره پیمانه بې غیرته
کوي، چې د وطن خرڅوني او ملي شرافت
بربادی ته هم غاړه ایږدي.

د پیسو سره مینه د خارجي دښمنانو د
سیسې په یوه مملکت کې دهمدغو رشوت
خورو د رذیلانه اعمالو او عاداتو په واسطه
صورت مومي.

## قوم پرستي

د قوم پرستی ریښې له منځه یوسئ، پر یو واحد
تغر راټول سئ؛ ځکه د دغه بد عمل مؤسیس
ابوجهل دئ.

ابوجهل سره له دې چې ښه پوهېدئ، چې رسول
الله صلی الله علیه وسلم حق پیغمبر دی، خو
په دې خاطر، چې تر بور مي دئ ولي ئې تصدیق
وکم، ځان ئې تباه او بر باد کړ.

د یو حدیث مفهوم دئ «هغه څوک له موږ
څخه نه دئ چې خلک قومیت ته رابولي او هغه
څوک له موږ څخه نه دئ، چي په دغه منظور
جنګ کوي او هغه څوک له موږ څخه نه دئ
چي په همدې مفکوره مرسي. (ابوداود)

# د کابل پېغله

(۲۳)

( په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول )

لیکوال : اسلامي مؤرخ : صادق حسین صدیقي

ژباړن : ډاکټر نثار احمد صمدواصفي /کاناډا



**د کابـل پېغلـه پـه ګیـره کـې :** شـېرخان، عبـدالرحمن، اشـرف او راشـد د ښـځو او مزدورانـو پـه شمول د کابل ښځه راووتل او مخ پر غزني روان سول. هغوی غوښته چي کندهار ته ولاړ سي، خو د غزني لـه لاري د کندهار سفر ډېر ستونزمن وو، دا ځکه چي لاره پورتـه کښته او صعب العبـور وه، ګام پر ګام غرونـه او غونډۍ وې، مګر دوی ځکه همدا خرابـه لار غوره کړه چي په غزني کي ئې د مرستي توقع لرله.

کله چي دوی له کابله را ووتـل نـو شـپه ډېـره تیاره سوې وه، هـره خـوا تروږمـي وه، د ماخستن د لمانځـه وخت تېر سوی وو، شپې خپله طبیعي تیاره او چوپتیا هره خوا خپره کړې وه، تیاره دومره ډېره وه، چي په هر ډول دقیق کتلو سره هم لاره هـیڅ نـه معلومېـده، دغـه لار د کابل ښځه د میدان خوا ته تلله، خو لـه بـده مرغـه هغوی لاره ورکـه کـړه او د کابـل پـه شاوخوا کـي پـه یـو پراخ میدان کي روان وه.

دغه مختصر کاروان تر نیمي شپې پوري خپل تګ تـه پـایښـت ورکـړ، کلـه چـي «لیلـی شـب کمـر» تـه ورسېدل او مخامخ ئې وکتل نو کابل او د هغـه ورپـوري سـیمي ئـې ولیـدې، شـېرخان و ارشـد تـه وویـل چـي ارشده! آیا ستا قسمت تل د جنګ سره وي؟

ارشد په ځواب کي ورته وویل: متأسفانه چي مـوږ لاره ورکه کړې ده او زموږ څلور ساعته تګ بیکاره سو، وګورئ هغه مخامخ د کابل ویران ښار دئ.

عبـدالرحمن: زه پـه زړګونـو واره د کابـل ښځـه میدان ته تللی یم خو نن مي دماغ کار ونکړ او دا ده لار مي ورکه کړه. زما په خیال شپه تر نیمایي اوښتې ده.

شـېرخان آسـمان تـه وکتـل او وې ویـل: هـو کې همداسـی ده! وګـورئ د شـپې سـترګه تـر افـق ډېـره راپورته سوې ده.

ارشد: زما په خیال یوه بجه به وي.

اشرف: ته خو ساعت لرې وې ګوره.

ارشد هم اورلګیت ولګاوه او ساعت تـه ئـې وکتـل، چي یوه نیمه بجه وه، وې ویل چي وخت یوه نیمه بجه ده.

شېرخان: ما خو مخکې هم وویل چې شپه تر نیمايي اوښتې ده.

عبدالرحمن: که موږ لاره نه وای ورکه کړې اوس به میدان ته نږدې سوي وای.

اشرف: هو بالکل. اوس خو ډېر سخت یخ دئ، زه ډار يږم چې دا ښځې به د دومره شدید ساړه تاب رانه وړي.

شېرخان: ته صحیح وایې، زه تر ټولو د حُسن جهاني او ستارې په هکله ډېر تشویش لرم، ځکه هغوی تر ننه پر آس باندي هیڅ سفر نه دی کړئ.

حسن جهاني په موسکا سره ټولو خصوصاً خپل پلار شېرخان ته وکتل او وې ویل: تاسي زما په هکله فکر مه کوئ، زه هیڅ په تکلیف نه یم او ټوله شپه هم په همدې ډول سفر کولای سم.

ارشد: باد دونه یخ دي، چې پر بدن باندي د غشي په رقم منبلي، ښه به دا وي چې کوم ځای ولټوو او شپه همدلته تېره کړو.

شیرخان ډېر ژر وویل: یا داسي غضب مه کوئ، وحشي بچه سقاو او د هغه بې رحمه کسان به د سپېدو د چاودلو سره سم په موږ پسي وګرځي، که موږ خدای مګړه د هغوی په لاس ورغلو نو د سختو ستونزو او مصیبتونو سره به مخامخ سو.

ارشد: دا صحیح ده، خو د دې یخ او سفر تکلیف هم نور نو له زغمه وزي.

ستارې په موسکا سره وویل: رښتیا هم ته نازک ئې، زه بېر يږم چې باد دې ووهي او زکام نسې.

حسن جهاني هم وخندل او وې ویل: زه هم په همدې فکر یم.

ارشد وشرمیدئ او په شرمېدلي څېره ئې دغو دواړو شاپيرانو ته وکتل او وې ویل: تاسي زما تشویش هیڅ مه کوئ، زه د یخ او سفر سره هیڅ تکلیف نه لرم.

شوخي ستارې په شرارت ډوله څېره سره ځواب ورکړ: بلې هوکې! تاسي درست وفرمایل، دا چې ویل ئې استراحت به وکړو، هغه تاسي نه بلکې بل څوک وو.

ارشد: زما تشویش خو یوازې ستاسو دوو په باره کې وو.

ستاره: تاسي اصلا خپل نوم نسو اخیستلای.

شېرخان وخندل او ستارې ته ئې وویل: ډېره شوخه ئې، د چا د خبري ځواب حتما ورکوې.

ستاره: که رښتیا او سمه خبره وکړم نو کوم تاوان پېښېږي؟

حسن جهاني هم په موسکا سره وویل: ځیني انسانان په کنایه کې خبره کوي، تا ناحقه خبره پسي ټینګه کړه، نو راځئ چې د ده تکلیف مد نظر و نیسو او دواړې اقرار وکړو چې هوکې موږ په تکلیف یو.

ستاره: چې دی ئې نه مني، هوکې راځه چې موږ اقرار وکړو.

مهربانو پټ – پټ خندل او په نرمه خندا يې ارشد ته وویل: ارشده! دغو دواړو نجونو چپ کړې.

ارشد: سمه ده، د دوی د خوشحالولو له پاره به زه همدا اقرار وکړم.

ستارې په خندا وویل: آها! معنی دا چې یو څوک په زوره اقرار در باندي کوي.

عبدالرحمن وویل: ستارې چپ سه! دوه ثلثه شپه تېره سوې ده او صرف یو ثلث بله پاته ده. که موږ تر سهار مخکې میدان ته و نه رسېږو، نو د بدمعاشو غلو له خوا به و نیول سو.

شېرخان :لاره معلومه کړه.

عبدالرحمن : لاره څه خاوري معلومه کړم، د تیارې له امله هیڅ شی نه راته معلومېږي.

حسن جهاني وويل : که معلومه وای چې دونه تیاره به وي نو دورځې به مو دوه درې څراغونه جوړ کړي وای.

ارشد په کراره حسن جهاني ته وويل : ستا څېره تر سپوږمۍ هم روښانه ده، که تر ما دمخه روانه سې نو ما ته به لاره معلومه سي.

حسن جهانه اول يو څه وشرمېده خو وروسته ئې فوراً ورته وويل : ته خو د خپل استراحت په فکر کې اوسه!

عبدالرحمن اول آسمان ته په غور وکتل، بیا ئې د کابل خوا ته په ښه دقت سره وکتل او وې ویل : لاره مې معلومه کړه، گورئ ښې خوا ته درځئ.

ټول کاروان راسته خوا ته روان سو. تر لږ تګ وروسته يو لاره په نظر ورغله چې د ختيځ او لوېديځ طرف ته تلله.

څنګه چې ډېر ناوخته وو، نو ساړه هم خورا ډېر وو، تر دې چې د دوی ټولو لاسونه او پښې په وړينو شالونو او پټوگانو کې د پېچلو سره سره يخ سول.

دا لاڅه، د ډېر شديد يخ له امله آسانو هم شيشنې شروع کړې، واوره هم اورېدلې وه او د دوی شالونه دومره يخ سوي وه، لکه په اوبو کې چې ئې غوټه کړي وي.

څنګه چې دا لاره ميدان ته تلله، نو ځکه ئې تګ يو څه ګړندی کړ.

لږ ګړی وروسته د سهار سپېدې راښکاره سوې. د شپې طبيعي چوپتيا د مرغانو په ږغونو سره ماته سوه. د ختيځ په خوا کې افق يو څه راښکاره سو.

شېرخان وويل چې سهار سو او ميدان لا ډېر لیري دئ.

عبدالرحمن ځواب ورکړ، چې هو کې. لږ تر لږه څلور يا پنځه ميله لیري دئ.

شېرخان : ميدان ته نږدې ارغندي دئ، که ارغندي ته ورسېږو نو دا به ډېر ښه وي.

عبدالرحمن : ارغندي د ميدان څخه پنځه ميله لیري د غره په لمن کې دئ، هلته رسېدل ډېر مشکل دي.

ارشد : ميدان هم د غرو په لمنو کې واقع دئ، که موږ ميدان ته ورسېږو نو دغلو د لاس رسي څخه خلاص يو.

شېرخان : بېشکه! موږ بايد د ميدان پر ځای غرو ته وخېژو. عبدالرحمانه، يو څه تېز درځه، تر لمر ختلو مخکې بايد هماغه غرو ته ورسېږو.

اوس دوی ټولو خپل تګ نور هم ګړندی کړ، نور نو روڼا خپره سوې وه او په اسمان کې داور غونډي روښنايي معلومېدله، د شپې تياره نوره ختمه سوې وه، روڼا وار په وار ډېرېده او خپرېده، لږ ګړی وروسته ارشد وويل : اوس لمر پر راختلو دئ، که موږ په همدې رفتار سره ځو نو د سهار لمونځ قضا کېږي.

شېرخان : بې شکه! بهتره دا ده چې يو ځای تم سو او د سهار لمونځ ادا کړو.

عبدالرحمن : تر دغه به بل ښه ځای پيدا نسي، همدلته لږ راسته خوا ته يوه چينه ده، چې دغه وادي او به کوي او بيا د کابل په سيند ورګډېږي. د همدې چينې پر غاړه به لمونځ ادا کړو.

شېرخان : ته دلته ښه بلد ئې، نو موږ چينې ته بوزه، عبدالرحمن هم د لويديځ خوا ته خپل آس رهي کړ او وې ويل : په ما پسې راځئ.

عبدالرحمن دمخه او ټوله په پسې سول، تر لږ تګ وروسته چینه په مخه ورغله، ټوله د آسونو څخه راکښته سول، قضای حاجت، اودس او لمونځ ئې وکړ، وروسته په بېغمۍ سره پر اسانو سپاره او رهي سول.

میدان یو کوچنی کلی وو، چې د غره په لمن کي پروت وو، د دې کلي وګړو د ورېو تجارت کاوه، عبدالرحمن د کلي خوا پر ښوېدل او د غره خوا ئې ونیوله، دا لار ډېره کږه وږه وه، څو چې وروسته د غره لمني ته رسېده او هلته ختمېده.

لمر راختلی و او روڼا ئې په میدان کي خپره سوې وه، د واورو څپر کي د دوی پر شالو او پټوګانو باندي د لمر د وړانګو په ذریعه کرار –کرار بر ښېدل او ویلي کېدل د دوی یخ وهلي بدنونه هم کرار – کرار تودېدل.

د شاپېرۍ غوندي ښایسته حسن جهاني سپین مخ د لمر د وړانګو د لوېدو له امله داسي بر ښېدئ، چې هیڅ نسوای ورته کتل کېدای، ارشد د کابل دغي ښکلي پېغلي ته په پټه – پټه کتل، ستارې چې د ده ګرم – ګرم کاته ولیدل نو کرار ئې وویل: حسن جهاني! څېره دې پټه کړه.

خو حسن جهانه په سوچونو کي ډوبه روانه وه او یو دم راوغورځېده او وې پوښتل چې ولي؟

شوخي او له شرارته ډکي ستارې په غلا ارشد ته وکتل او وې ویل: ته خبره نه ئې خو ارشد ورور ډېر څېر – څېر درته ګوري!

حسن جهاني هم د ارشد خوا ته وکتل، ستارې رښتیا ورته ویل، ځکه ارشد تر همدې مهاله لا هغې ته د مینې څخه په ډک نظر کتل.

دا وشرمېده خو دغه ادا یې حتی یو زاهد انسان هم دوکه کاوه، ارشد د هغې پر دغه ادا باندي نور هم مین سو. حسن جهاني په موسکا سره ارشد ته کتل او کرار ئې وویل: ته څه شي ته ګورې؟

ارشد یو دم جټکه وخوړه او په حال کي راغی او تر لږ ځنډ وروسته ئې وویل: ما ما... دغه د کابل ښایسته، حسینه او د ښکلا ملکې ته کتل چې هغې ته په کتلو سره لمر هم راخیژي او سپوږمۍ هم راپورته کیږي، یعني هغه ښکلې چې د افغانستان په هر کور کي ئې د ښایست صفتونه کیږي.

ستارې په خندا ورته وویل: داسي نه چې زما ګرانه خور نظر کړې.

ارشد شوخي او شریري ستارې ته وکتل، ستارې هم وخندل او ارشد سر کښته کړ.

دوی ټوله نور نو غونډۍ ته ختلي وه، هلته ئې په یو هوار غوندي میدان کي واړول، آسان ئې یوې خوا ته ودرول، زینونه او نور سامان ئې ترې کښته کړل او یوې خورا ته ئې کښېښودل، څو کمبلي ئې هواري کړې او ټوله پر کښېناستل. د دوی سره میوه هم وه، هغه ئې وخوړل او د استراحت بندوبست ئې وکړ، یوې خوا ته ښځې پر بوتې او د هغوی څخه یو څه لیري نارینه پریوتل، ځنګه چې ټوله ګرده شپه ویښ وه او د ماښام راهیسي ئې سفر کړی وو، نو ډېر ستړي سوي وه او د پریوتلو سره سم په خواږه خوب بیده سول.

کله چې راویښ سول ماځیګر وو، دا مهال نور تګ امکان نه درلود، نو یو څه نږدې ئې غارونه پاک کړل، وچ وابنه ئې پکښې هوار او فرش کړل، وروسته ئې کمبلي پر هواري کړې، د شپې ئې یوازي مېوه وخوړل او پر بوتل، سهار وختي راویښ سول، تر قضای حاجت وروسته ئې اودسونه تازه کړل او لمونځونه ئې وکړل، د لمر تر راختلو وروسته ئې اسان زین کړل او بارونه ئې پر کښېښودل او مخ پر ارغندي روان سول.

ټوله ورځ ئې سفر وکړ څو چې ماښام ارغندي ته ورسېدل، هلته ئې د یو داسي شخص سره ولیدل چې یو وخت د شېرخان تر لاس لاندي مقرر وو خو اوس تقاعد سوی وو، هغه د شېرخان او د ټولو ورسره کسانو ښه خدمت او عزت وکړ، څو ورځي ئې د دوی ښه میلمه پالنه وکړه، په ډېر مشکل ئې پسله دوو هفتو هغوی ته اجازه ورکړه، چي مخ پر غزني روان سي.

دوی سهار وختي دارغندي څخه روان سول. غرمه مهال د یو غره درې ته ورسېدل، همدلته ئې دمه وکړه.

دلته او به د غره د یو کمر څخه راتویدلې او څو گامه وروسته د یوې چینې په توگه بهېدلې. دوی د همدې چینې پر څنډه دېره سول، لږ گړی وروسته ئې د ډوډۍ په خوړلو پیل وکړ، چي دارغندي څخه ئې ورسره راوړې وه. دوی لا د ډوډۍ خوړل پای ته نه وو رسولي چي د آسونو د پښو دربې ئې واورېدئ، ارشد د شېرخان څخه وپوښتل چي آیا تاسي د آسونو د پښو رغونه اورئ؟

شېرخان: هو کې اورم ئې! ښایي مسافرین به وي.

عبدالرحمن: دا امکان هم لري چي ښکاریان به وي.

ارشد: زما په خیال د بچه سقاو خلک به همدلته راغلي وي.

ستا وهم خو بېخي انتها ته ورسېدئ.

ارشد: خدای دي وکړي چي هغه ظالمان نه وي.

عبدالرحمن: هغوی نسي کېدای، تاسي په ډاډه زړه خپله ډوډۍ وخورئ.

دوی بیرته د ډوډۍ په خوړلو شروع وکړه خو رغونه وار په وار را نږدې کېدل، دا رغونه د ډېرو آسونو د پښو وه او داسي معلومېده لکه یو ډېر لوی قطار چي را روان وي.

دوی په ډېر اطمینان سره د ډوډۍ په خوړلو بوخت وه. ښځو هم د نارینه وو سره یو ځای ډوډۍ خوړله، دوی د چینې پر څنډه په یوه گولایي کې ناست وه، نابېره د گولایي څخه د یو آس غاړه راښکاره سوه، وروسته ډېر نور آسان هم پسي ښکاره سول، دوی دغه سپاره ولیدل او ډېر وارخطا سول چي دا څوک دي، هو ، دا سقاوي سپاره پوځیان وه، چي د محمد یعقوب په قوماندې سره را روان وه. ارشد و شېرخان ته وویل: افسوس، مونږ وغولېدو.

شېرخان: په رښتیا هم مونږ سخت خطا وتلو، کاشکي مو ستا پر خبره په هماغه پیل کي لا غور نیولی او متوجه سوي وای.

اشرف: اوس هم خیر و خیریت دئ، ژر خپلي توفنگچې او توپکونه در واخلئ.

ارشد: بېشکه! هلئ، ژر گوئ.

ټوله نارینه راولاړ سول، توپکو ته ئې مرمۍ ورتېري کړې او د مرمیو ډک قطارونه ئې ژر - ژر وتړل. ارشد ښځي د یوې لویې ډبریني ټوټې شا ته پټې کړې.

دا مهال سقاوي سپاره پوځیان نږدې راورسېدل چي تر سلو کسانو زیات وه. ټول ډېر مجهز او وسله وال وه، محمد یعقوب نږدې راغی او شېرخان ته ئې وویل: ولې خپل ځانونه له منځه وړئ؟ که تاسي ټول خپلي وسلې پر ځمکه کښېږدئ نو تر نیولو وروسته به اعلیحضرت حبیب الله خان د خدای پیغمبر ته وړاندي

سئ، اعلیحضرت ډېر مهربان انسان دئ، یقیني یم چي تاسي به وبخښي.

شېرخان په قهر سره ځواب ورکړ: موږ د غلو اطاعت نه کوو.

محمد یعقوب: ښه فکر وکړئ.

شیرخان: بالکل صحیح فکر مو کړی دئ.

محمد یعقوب: ګورئ، تاسو ټوله نهه یا لس کسان یاست خو موږ پوره سل کسه یو، تاسي قطعاً زموږ مقابله نسی کولای.

ارشد ورته وویل: که مقابله ونکړای سو، نو ستاسو څخه به حتماً پنځلس شل کسان ووژنو بیا به شهیدان سو.

محمد یعقوب: ارشده! په رښتیا هم زړه ور یې. که ته د اعلیحضرت اطاعت وکړې نو هغه به دي جنرال کړي.

ارشد: زه د سقاو د زوی هیڅ اطاعت نسم کولای.

محمد یعقوب: آیا دا ستا وروستی ځواب دئ؟

ارشد: هو کې.

محمد یعقوب: افسوس! ته د خپل ځان سره دښمني کوې.

ارشد: که ستا په زړه کي انساني خواخوږي وي، نو زموږ مزاحمت مه کوه.

محمد یعقوب: زه حتماً د زړه ورو قدر کوم، زما په زړه کي ستا لپاره احترام موجود دئ، خو زه مجبور یم او ستا د نیولو دنده راسپارل سوې ده.

ارشد: ته نسې کولای چي موږ ژوندي و نیسې او د ځان سره مو بوزې.

محمد یعقوب: بله چاره نلرم.

د همدې خبری په کولو سره محمد یعقوب پر شا ولاړی او خپلو ملګرو ته ئې د ډزو او حملې قومانده ورکړه، سقاوي پوځیانو هم خپلو ټوپکانو ته مرمۍ ورتیري کړې او په ټکانو ئې پیل وکړ.

ارشد، اشرف، شېرخان، عبدالرحمن او ورسره کسانو هم فایرونه شروع کړل.

په غرونو کي د مرمیو د ږغونو ازانګې خپرې سوې، د ټوپکونو د شپېلیو څخه د باروتو راوتلي دود او لوګي ټوله محیط پر سر واخیست.

محمد یعقوب خپلو ملګرو ته د وړاندي تګ قومانده ورکړه، پوځیان هم د مرمیو د ګوزارونو سره یو ځای وړاندي ورتلل، شیرخان او ملګرو ئې په ډېر زړه ورتوب سره دفاع کول، دوی په لوړ مورال او عالي جنګي روحیه سره جګړې ته پاینښت ورکاوه.

دواړو خواوو ژر - ژر خپل ټوپکونه ډکول او ګوزارونه ئې کول، د شېرخان دوه کسان له پښو ولوېدل او شپږ اووه سقاوي سپاره هم ووژل سول.

دا مهال محمد یعقوب سخت وخښمېد او خپل اندېوالان ئې نور هم ولمسول او دی هم ګام پر ګام مخته ورسره روان وو، ارشد او ملګري ئې یو څه پر شا سول، محمد یعقوب په لوړ ږغ ناره وکړه: خاینو یاغیانو، تاسي اوس زموږ څخه نسی خلاصېدای.

د ده خبري ته هیچا ځواب ورنکړ، جنګ مسلسل دوه ساعته دوام وکړ، د شېرخان او ملګرو ئې مرمۍ ختم سوې او د ارشد سره فقط یوه مرمۍ باقي پاته وه،

ده شېرخان ته داسي وويل: زما مرمۍ خو خلاصي سوې، نوره مقابله نسو ورسره کولای، زه او اشرف به هغوی بوخت او تم کړو، تاسي ښځي واخلی او روان سئ.

شیرخان په ډېره مینه ورته وکتل او وې ویل: یا، دا قطعاً نسي کېدای موږ به ټوله په ګډه ژوندي یو او په ګډه به مرو.

ارشد: خو تر موږ وروسته به د دې ښځو سا ننه څوک کوي؟

شېرخان: هغه خدای به ئې کوي، چي دوی ئې پیدا کړي دي.

ارشد: چي داسي ده نو خپلي توري راوباسئ او پر دغو ظالمانو برید وکړئ.

شېرخان: موږ په تورو سره د مرمیو مقابله نسو کولای.

ارشد: تاسي ئې مه کوئ، زه ئې کوم.

ارشد د همدې خبري د کولو سره سم توره راوکښله او پر مخ ئې ورمنډه کړه. د خپل آس کیزه ئې وخوځول او آس هم په چار نالو ور وځغستل، اشرف هم تر شا ورپسي روان سو.

محمد یعقوب دا دواړه توریالي او جنګیالي ولیدل چي پر مخ ورځي، نو پر خپلو ملګرو ئې ور ږغ وکړ، چي تاسي خو د ارشد زړه ورتوب لیدلی دئ، چي د ستاینې وړ دئ، کاشکي ئې د اعلیحضرت حبیب الله خان اطاعت کولای.

ارشد او اشرف د مرمیو په ګوزارونو او وارونو کي پر مخ ور روان وه. سقاوي سپرو پر دواړو مسلسل مرمۍ اوورولې، خو الله تعالی ژوند ورکړی وو، د هیڅ نښان نه پر برابرېدی او مرمۍ ئې مخ، شا، راسته او چپه خوا ته تېرېدې.

کله چي دا دواړه ننګیالي او توریالي سقاوي سپرو ته ورنږدې سول نو د یو سپاره مرمۍ د ارشد پر آس ولګیده، آس هم وتورېدی خو ارشد په ډېره هوښیارۍ سره ځان پر ټینګ کړی وو، څو چي د لوېدلو څخه وژغورل سو، آس ئې د بیرې له امله یوې خوا ته په بېړه وتښتېدی. د اشرف آس هم د هغه پیروي وکړه، دواړو ډېر کوښښ وکړ، چي خپل - خپل آس کنټرول کړي خو آسونه هیڅ نه درېدل او خپل سپرلي ئې ځغلول.

محمد یعقوب هغوی تعقیب نکړل، بلکي د هغوی تګ ئې ډېر غنیمت و باله، ده خپل سپاره ولمسول او پر شېرخان ئې د وړاندې تګ امر ورکړ، د شېرخان او ملګرو سره ئې مرمۍ خلاصي سوي وې. نو ځکه ئې د جنګ دوام ګټمن نه باله. هغه وچي د سقاوي سپرو په رارسېدو سره ئې وسلې پر ځمکه کښېښوولې.

محمد یعقوب هم بېله ځنډه هغوی ونیول، وروسته د ښځو خوا ته ورغی، هغوی ټولي خورا بېرېدلي او ترهېدلي وې، د شاپیرۍ غوندي حسن جهاني او ښایسته ستارې د ځېرو رنګ الوتی وو. مخونه ئې د ډېر خوف او وحشت له امله تک سپین اوښتي وه، د ښکلو سترګو څخه ئې وهم او هراس له ورایه ښکارېدل.

محمد یعقوب ټولي ښځي هم ونیولې او پر آسونو ئې سپرې کړې، نارینه قیدیان ئې هم پر آسانو سپاره کړل او ټوله بیرته مخ پر کابل روان سول.

وروسته .... جنرال نادر خان

ژباړه: عبدالظاهر څرک

# د عبدالرحیم هاتف اټوبیوګرافي

**(لومړی برخه)**

زه داسي افتخار نه لرم چي وخپلو هیوادوالو ته ئې وړاندي کم، ډېر پرېشانه هم نه یم، ځکه خدای جل جلاله لره دي حمد وي، چي زما، دوستانو او د قوم دشرم سبب وګرځي. اما دا به ښه وای چي زه، دوستان او زماهیوادوالو داسي لاسته راوړنه درلودای، چي دمدني نړۍ په حضور کي ئې فخر ارزښت درلودای.

زه مهاتماګاندي نه یم چي زما دژوند طرزد میلیونو انسانانو پرسر نوشت تاسیرولري او نه هم د مرحوم پاچاخان سره شباهت لرم، چي خپل تورزن قوم ته ئې د عدم تشدد درس ورکړ. اما د ټولي عاجزۍ سره د آدم علیه السلام د اولادې څخه یو فرد او افغان تعبه یم، چي نه مي ګمنامي په نصیب سوې او نه مي په وجود کي د ښو درک معلومېږي.

نوم مي عبدالرحیم دئ، د پلار نوم مي مولوي محمدویس. دنیکه نوم مي حاجي محمد نور وو، نیکه مي دین محمد او د هغه پلار فقیر محمد نومېږي. دین محمد د ړوب په تکۍ کي د(۱۳۰۰ هـ ش) کال په حدودو کي مړسو. د ده څخه دوه کوچني زامن محمد نور او الله نور اویوه کونډه په میراث پاته سول، چي نیږدې دوستان او قریبان ئې نه درلودل، دې کونډې ښځي دکندهار په ارغنداب کي دوستان خېښان درلوده، مجبوره سول دوه کوچنیان ئې ترلاس ونیول په ارغنداب کي د خپلو دوستانو کره نابللي میلمانه سول، دیوې کونډې بې سرپرسته اولادو ته ښېله دې، چي پر مُلا شاګردان سي بل کارورته مسیر نه وو، خصوصاً په هغه وخت کي، هغه وو چي محمدنور په نوې ځوانۍ کي د سردې په کلي کي مذهبي لومړني درسونه زده کړل، بیائې دکندهار په ساګزو کوڅه کي نور درسونه وویل او دلې اوسېدی، په دې کوڅه کي ئې د محمداکرم خان اندړ لور وغوښتل، دی پوه سو، چي کورنی مسؤلیت د ملا ئې له کارسره اسانه نه دئ، نو ړوب ته ولاړی او خپله میراثي مځکه ئې په تکۍ کي خرڅه کړه. د دغو پیسو څخه ئې د خپل ورور الله نور برخه ورکړه او په پاته پیسو ئې دکور سامان او دتجارت لپاره مالونه رانیول. وایي چي دغه پیسي شپېرسوه کندهارۍ سکې وې.

محمدنور ډېرپوه اوښه نوم لرونکی تاجروو، په میلمه پالنه، سخاوت او ښه مجلس په خلکو کي مشهوره وو او په عین حال کي یودینداره او متقي سړی او په عین زمان کي یوخوش چانسه او ماهر تجار هم وو.

یو لړ تجارت ئې د ښکارپور او سکهر د ښارو څخه دیوې خوا او د کندهار څخه ئې د دې خوا ورشروع کئ، ترڅو چي تجارت ئې بمبئي ته هم ورسېدی، کله چي دریم وار دبیت الحرم زیارت ته تلی اویازره افغانۍ ئې د حاجي عطامحمدخان پوپلزي سره د امانت په ډول پرتې وې، (په کندهار کي دبانکونو دتاسیس دمخه نوموړي دیوامین سړي وظیفه اجراکول.)

مرحوم ملامحمدنور د محمد نادرخان د سلطنت په شروع کي نفلي حج ته تللي وو، د هغې خوا چي راتلی په کراچي کي مړسو او هلته دمیوه شاپه مشهوره هدیره کي ښخ سو. د ده څخه دوه زامن محمد میر او

محمدویس او یوه لور پاته سول، لور ئې تر واده مخکې په پیغلتوب کې مړه سول.

زه د خپل نیکه څخه هیڅ خاطره نه لرم ځکه زما په کوچنیوالي کې حج ته تللی وو او د هغې خوا را نه غلی، که څه هم د هغې زمانې ځیني حادثې مي په یاد دي، زمانیکه دي خدای وبخښي هیڅ خاطره ئې نه لرم بېله دې، چې د ده د عصر خلکو دی په نیکي یاداوه، اما زما مورنی نیکه (رحمت الله بابا) پوره دیوه کامل مسلمان په اخلاقو سنبال وو، د فقیری او مسکنت په حال کي صابر وو، حتا خیر او خیرات ئې هم کاوه، څوواره مي په یاد دي، چې یو سوالګر به د کور په دروازه کي د خیر غوښتلو ږغ وکی بابا دستي دښوروا کاسه د ډوډی سره فقیر ته ورواېستل، په داسي حال کي چي بابا به دیوې هفتي په جریان کي په دغه شپه پر ښوروا قادر سوی وو، کله به داسي هم ولیدل سو، چي د ژمي په سړه او باراني شپه به دیخه څخه لړزېدی کور ته به راغلی، هغه یوازینی پوستین چي ده به په ژمي کي ځان په توداوه یو مسکین ته به ئې ورکړی وو، ده به هیڅ وخت خپل طبیعت نه خرابوی، قهر او درد ئې مانه دی لیدلی، د کوچنیانو شیطانی او ناآرامی ده زغملې، دی په یوه مشهوره کورنی کي لوی سوي وو، عبدالله خان پوپلزي (محزون) زوی وو، چي د خپل عصر شاعر او د دیوان خاوند وو، د عبدالحمید مهمند دسبک پیرو وو.

دوی د کندهار دبلدي دکلي وه، بابا هم دخپل پلار په پیروي شعرونو لیکولو ته ادامه ورکړه، هېڅ وخت ئې د خپل قوم او نسب یا د تیري زمانې دښه ژوند ذکر نه کاوه، هره جمعه به د شراف الدین اخندزاده دتفسیر او رېدو ته حاضرېدی، شعر ویل د بابا ذوق وو، سر بېره پردې ئې داعلی شنو چایو او د تنباکو چلم څکلو سره هم علاقه درلودل. بالاخره د چلم دڅکولو له امله د سږو او توخي په ناعلاجه مرض اخته سو، ښه سو د عمر په اخر کي ئې د تنباکو څکولو عمل پرېښووی، مګر د پتني (پوتني) ګل وکرلو او روزلو ته ئې ادامه ورکړل.

زما د کوچنیوالي ډېر عمر د بابا په حضور کي تېر سو، چي په هغه وخت کي د ده لوړ او اسلامي شخصیت درک مانه سوای کولای، هرڅونده چي د ده څخه رالیري سوی یم د ده ولوړ شخصیت ته کرار - کرار متوجه کېږم، خو متاسفانه چي ځان مي د ده په رکم جوړ نه کی.

بابا کوښښ کوی، چي پنځه وخت لمونځ په جماعت اداکی، بابا دي خدای وبخښي او جنتونه دې نصیب سي، د ژوند په اخیره کي ئې د بیت الله شریفي حج او د محمدسول صلی الله علیه وسلم زیارت په نصیب سو، په داسي شوق او عشقانه حرص سره ئې د دې فرضې آدا کولو ته اقدام وکړ، چي تابه ویل یو مین د خپل معشوق ولیدو ته ورځي، د کور سامانونه ئې په لیلام خرڅ کړه، حج ته ولاړی او بیا راو نه کرځېدئ، د لاري په اوږدو کي د کویټ په ریګستان کي مړسو، هورې ښخ سو، خدای دې وبخښي.

زه په نسبتاً کم سند په ښوونځي کي شامل سوم، په هغه وخت کي د کندهار په ښار کي یو مکتب وو، چي د اعلیحضرت امان الله خان په زمانه کي فعاله سوی وو، لومړی ئې تجلا مکتب بلی، ورسته ئې و دې مکتب ته (شالیمار) ویل او بیا ئې مشرقي مکتب وباله.

سردار مهردل خان مشرقي مشهوره شاعر د دې ځای او کوڅې اوسېدونکی دئ، دی د پنځو کندهاري ورونو څخه یو وو، په دې خاطر دا مکتب د ده په نامه مسمی سو، چي ورسته دې مکتب ارتقاء وکړه او د مشرقي لیسې په نامه ونومول سو.

دوهم مکتب په ده خواجه کي افتتاح سو، چي د دغه کلي په نامه ونومول سو، زه په خپل وخت کي په کندهار کي لومړنی زده کوونکی وم، چي پلار مي هم د دغه مکتب څخه فارغه سوي وو او په دغه مکتب کي

استاد او معلم وو، په دې خاطر سره زما پلار په مولوي سره مشهوره سو، هغه په لومړي سرکي یوڅه باسواده هم وو، په ښوونځي شامل سو. دی لیکوال او شاعرهم وو، د مکتب سبق ئې د علامه حبیبي د شاګرد او ښوونکي په حیث یوځای سر ته رسولی وه، په دې خاطر ئې په مکتب کي زما په شاملېدو کي تلوار کوی، باید ووایم چي د پلار لوړ فکر او پوهي ماته فایده ونه کړل، ځکه کله چي زه ښوونځي ته شامل سوم پلارمي ډېر وخت په سفر کی وو او د سفر شپې ئې پر حضر ډېري وې.

زموږ استوګن ځای د نورزو کوڅه وه، د دې کوڅې شاګردانو شمېر دونده کم وو، چي دیوه لاس دګوتو شمېر پرډېر وو، کله چي زه پلار په مکتب کي شاملوم مرحوم مدیر صاحب صالح محمدخان د پوهني مدیر وو، دی د زما پلار استاد وو، په دغه ورځ دی هم په مکتب کي حاضر وو، زه ئې ونازولم او راته وې ویل: کوښښ کوه چي غیرحاضري ونکړې، که غېرحاضرسوې په دغه فلزي لوحه بیا سزاء درکوم، ما په خپل کشرتوب کي د لرګي، سوک، قمچیني او لغتي سزاء لیدلې وه، مګر د فلزي خط کش څخه داسي وېرېدلم چي ترځلورو کالو پورمي یوه ورځ هم غېرحاضري ونکړه.

د مکتب خاطري:

د کلنۍ آزمویني نتیجې مرحوم صالح محمد خان دپوهني مدیر راته اعلانولې، د عبدالرحیم نوم ئې ذکر کړ، چي بریالی دئ، زموږ په ټولګی کي یو بل عبدالرحیم هم وو، فوراً ئې صاحب ووایه او دوهم صنف ته ولاړیو دوهم عبدالرحیم زه وم چي د ازمویني نتیجه ئې ناکام وه او زه ئې بیر ته لومړی صنف ته واستولم، چي هلته نورناکامان هم وه او یو دبله مو ډاډ سره ورکاوه، زه خپله په دې نه پوهېدم، چي ناکام څه شي دئ او کامیابه څه معنی، یو ګړی ورسته هغه کامیاب عبدالرحیم معلم ترغوږو نیولی وو اول صنف ته ئې راوستي، ول دغه عبدالرحیم ناکام دئ او هغه بل څوک دئ، هغه کامیابه دئ، دی ئې د ناکامانو په ډله کي کښېنوی او زه ئې ترلاس ونیولم دوهم صنف ته ئې بوتلم، چي ربښتیا سي په هغه وخت کي ئې زه په فرق نه پوهېدم.

دوهمه پېښه چي صنف کي مي په یاد ده هغه داوه، چي د مکتب ټوله شاګردان ئې د ښار دباندي و ایستل، داسي ځای ته ئې بوتلو چي خاص دوړي او د ښار ودانۍ نه معلومېدلې، زه نه پوهېدم چي دا عملیات دڅه لپاره دي، زمایو همصنفي عبدالشکور د حاجي محمد درویش خان زوی راته وویل چي ولي نه ژاړې؟ ما ورته وویل ولي وژاړم؟ ده راته وویل که ښوونکي ولیدې، چي سترګي دي د اوښکو ډکي نه دي وهي دي، خبر مي کړې زه په هغه وخت کي پوه نه سوم، شل کاله ورسته چي مي دا موضوع دباخبره کسانو سره شریکه کړل هغه داوه، چي سردار محمد عزیزخان د اعلیحضرت محمد نادرخان ورور ئې په جرمني کي ترور کړی وو او جنازه ئې د ښخېدو لپاره راوړل.

دریمه پېښه چي د هغه وخته زما په یاد ده، یوه ورځ د مکتب د دروازې مخته رغونه پورته سوه، شاګردانو تلاش کوه، چي له نژدې صحنه ووینې، ښوونکو دټولګیو څخه شاګردانو ته د وتلو اجازه نه ورکول، هغه څه چي ما د صنف د دننه څخه ولیدل محمد ابراهیم د شالیمار د مکتب دپنځم ټولګی زده کوونکی، د مکتب د سرمعلم سید اسحق خان سره په جنګ اخته دئ، سرمعلم ئې د مځکي راویشتلی دئ، یو نفر چپراسي چي سید اسحق د ځانه سره دکابله راوستلی وو، د محمد ابراهیم پرسر ولاړ وو او په یوه اوږده لرګي ئې محمدابراهیم واهه، ملا محمدشریف جانان په هر نسبت، چي وو چپړاسي ئې د مداخلي څخه منع کاوه، بېله دې، چي غالب او مغلوب معلوم سي موضوع خلاصه سول، یوساعت وروسته مدیر صاحب صالح محمدخان خپله تشریف راوړی او د

معلمینو او شاگردانو په مخ کي ئې اعلان وکی، چي سیداسحق سرمعلم او معلم محمدشریف جانان د ټول عمر لپاره د دولتي خدمت څخه ایسته سول او محمدابراهیم د ښوونځی څخه خارج سو. محمدرسول خان معلم د نوي سرمعلم ترمقرری پوري سرپرست سرمعلم وټاکل سو، مولوي صالح محمد ته وویل چي دا فیصله کم مقام صادره کړې ده، ځرنګه چي د درې ګونو قواوو تفکیک هغه وخت نه وو، په غالب ګمان د اجرائې څخه د اقرار صادر سوی وي او موږ باید دا فیصله د عدالت د سرعت یوه نمونه وبولو اما څنګه چي فیصله عاجله وه، اثرات ئې هم په عاجله توګه له منځه ولاړه، ترلږ وخت ورسته شیخ المعلمین (ملاجانان شریف) بیرته خپلي وظیفې ته حاضر سو او تقریبا ⑩ د عمر تر اخره ئې دې شریفي وظیفې ته ادامه ورکړه.

زما لپاره ملاجانان د درو نسلو استاد وو، پلار مي چي په لوړ سن ئې مکتب شروع کړي وو، ملاجانان ئې معلم وو، زه چي په کښته سن مي مکتب شروع کړي وو زما معلم وو او همدارنګه د زرغونې انا په لیسه کي زما د لور معلم وو، ده پر موږ حق درلودی، چي یو مکتب د ده په نوم نومول سوی وای او د ده عکسونه په هغه مکاتبو کي چي ده تدریس پکښي کاوه د ده د احترام په خاطر ځوړندسوي وای، داسي خونه وسول. د معارف سره د جنګ په دوره کي ئې هم خپل شغل ته ادامه ورکړه او په مهاجر توب او جلا وطني کي مړ سو، خدای دي پر ورحمیږي.

یوولس کاله ورسته د محمدشریف جانان او سید اسحق سرمعلم تر ایسته کېدو، کله چي زه د حبیبې په مکتب کي وم (حبیبه مکتب هغه وخت د کابل د باغ عمومي د دریاب پر غاړه موقیعت درلودی) یوچا زما څخه پوښتنه وکړه، چي ماپېژنې؟ ما ورته وویل چي دو نه دي پېژنم چي د دغه مکتب په لومړنیو صنفو کي ښونکی ئې، ده راته وویل ښه فکر وکه په کندهار کي ستاسي سرمعلم څوک وو؟ ورسته زما په یاد سو چي دا هغه سید اسحق سرمعلم دئ، چي د وظیفې څخه ئې پسي اخستی وو، اوس ئې خپل شغل ته ادامه ورکول.

څلرم داچي خپلو درسو ته مي په دغه مکتب کي ادامه ورکول، کله چي څلرم ټولګي ته ورسېدم، زه او بعضي نور زده کوونکي د حربیې مکتب ته انتخاب سولو، ما هیڅوک نه درلودل چي زما د سفر اسباب رابرابر کي، یا مي د دي جلب څخه خلاص کي، سر بېره پر دې چي د لږ عمر هم وم او وداسي لیلیېو ته مي آمادګي نه درلودله، مولاناسیدتاج الدین بخاري، چي د بخارا د مهاجرینو څخه وو او زموږ د دینیات او عربي معلم وو او ډېر محترم سړی وو، مرحوم غلام حیدر عدالت د معارف مدیر ته ورغلی او ورته وې ویل چي دا هلک ډېر کوچنی دئ، که ئې د حربیې مکتب د تللو څخه معاف کی. عدالت ورته وویل چي دا امر سردار صاحب داؤدخان کړی دئ او دی دي حربیې مکتب ته نه ځي (احضاریه) ته نامزاده دئ هغه دو نه مشکل نه دئ. بالاخره ښاغلي عدالت د مولانا خواست ومنی او زه د هغه جلب څخه معاف سوم. (خدای دي دواړه وبخښي)

پنځم په کندهار کي لومړنی ښوونځی پر پنځم صنف خلاصېدل، کله چي موږ پنځم صنف ته کامیاب سولو زموږ مکتب متوسطه یا د هغه وخت په اصطلاح رشدیه سول. د اماني دورې د پنځم صنف فارغ التحصیلانو د خپلو درسو ادامه ورکولو لپاره هم د رشدیې مکتب شروع کی. که څه هم د دوی سن لوړ وو، په دې مکتب کي شامل سول او زموږ صنف ته راغلل، د دې ډلي څخه محمد عمر نعیمي او سرادار محمد صدیق (اصلاً د کنجاک کاریز اوسېدونکی وو او پلار ئې په د هله کي حاکم وو)، داسي کسان هم وه چي د مکتب څخه ئې د باندي درسو نه ویلي وه او دوی غوښتل، چي د مهاجرو درسو څخه هم ګټه واخلي لکه حبیب الله اخندزاده د ملا سلطان محمد پوپلزي زوی یا سید محمدشا آغا، چي د دوی کورنی دهند د جنوب (دکن) څخه کندهار ته راغلی وه. نور بیا...

عزت‌الله اریال

# تر اوږدې کورنۍ جګړې وروسته یوه سولییزه سریلانکا

ځوانان د هرې ټولنې یو لوی امید، د راتلونکې رهبران او د یوه هیواد مهمه هستې بلل کیږي، ځکه نو دولتونه د دغه هیوادنۍ پایو د تقویې او روزنې لپاره په بېلا بېلو طریقو هڅه کوي، چې د راتلونکو مسئولیتونو اخیستلو لپاره ئې ورزوي.

د همدې اړتیا پر اساس د (۲۰۱۷، م) کال د اکتوبر په لومړۍ نېټه د افغانستان د ځوانو رهبرانو په نوم د هر ولایت په استازیتوب (۱) یو تن چې ټول ئې (۳۴) تنه کېدل، تر یو کال روزنې وروسته د عملي رهبرۍ او هیواد جوړونې چارو د لیدلو لپاره سریلانکا هیواد ته په علمي سفر ولیږل سول.

دغه نمونه یې ځوانان چې د ازاد رقابت د لارې دې پروسې ته انتخاب سوي ول، د کال په جریان کې ئې د رهبرۍ، مدیریت، جنډر، شبکې جوړونې، پروپوزل جوړنې او کې شمېر نور ټریننګونه او د رهبرانو سره لیدنې درلودلې.

د دې لپاره چې د رهبرۍ مهارتونه ئې لا پیاوړي او په عملي بڼه یو څه ووینې، د علمي سفر لپاره ورته یو داسې اسیایي هیواد انتخاب سو، چې شاوخوا دېرش کاله ئې په کورنۍ جنګ کې تېر کړي او اوس یو سولیز هیواد ګرځېدلی او په ډلو – ډلو خارجي سیلانیان ورته راځي.

په دغه ډله کې ما د کندهار ولایت د ځوانانو په استازیتوب د یوه کال لپاره کډون درلود. غواړم هغه تجربې او د ستر کو لیدلی حال ستاسو سره شریک کړم چې ما په خپل دغه بهرنې علمي سفر کې لیدلي او اوریدلي دي.

زموږ دغه علمي سفر په کابل کې د سریلانکا د اساسي مسایلو په اړه تر یو ورځنې روزنې وروسته د ۳۶ کسانو په شتون کې پیل سو.

موږ د کابل څخه لومړۍ دوبۍ بیا سریلانکا ته ورسېدو، سریلانکا ته په رسېدو مو لومړۍ پاته نیمه ورځ په استراحت او نورې پنځه ورځې مو سهار تر ماز دیګره دیو بیل هوټل به کنفرانس هال کې د سریلانکا تاریخ، حکومتي جوړښت، جګړو، سولې، اداري ستونزو او حل لارو په اړه د بېلا بېلو اشخاصو څخه د دې هیواد په اړه معلومات واورېدل او د موقع پیدا کېدو پر وخت مو د خپل هیواد په اړه هم ځینې مثبت مسایل ورسره شریکول او یا مو د دوی د کارونو سره پر تله کول.

هغه څه چې مور په پنځه ورځني سمینارونو کې واوریدل او وموليدل زمونږ لپاره ډېر ګټور اومهم وه، که څه هم چې ټول ئې په دې لنډه ليکنه کې نسي ذکر کېدای، خو لنډ او مهم ئې درسره په لاندې ډول درسره شريکوم.

**دسریلانکاهیواد په اړه لومړني معلومات:** دا هیواد په جنوبي اسیا کې دهندوستان جنوب لوېديځ ته دهند سمندر په مستو څپو کې ديوې سرسبزه جزيرې په شکل د ( ۶۵،۶۱۰ km2 )مساحت په درلودو موقعت لري.

سریلانکا چې پخواني نوم يې سرانديب وه او اوسني رسمي نوم ئې د سریلانکا دیموکراتیک سوسیالیست جمهوريت دئ او ډېر پخواني تاريخ لري، د معلوماتو له مخې دانسانانو پلار ادم علیه السلام هم دجنت څخه مځکې ته په راتګ سره پر دغه مځکه قدم ایښی، د دغه هیوادخلګ تور رنګ او ګردی ونه لري، هوایي مرطوبه او خاوره ئې سره او نمجنه ده.

**جغرافيي جوړښت:** داهیواد ۲۲ میلیونه نفوس، (۹) نه ولایته او پنځه ویشت ولسوالی لري، سیاسي مرکز ئې (سري جایاواردنپورکوټه) او تجارتي مرکز ئې د کولمبو ښار دئ، د ۱۵ پېړی له نیمايي د ۲۰ مې پېړی تر نیمايي پرتګالیانو، هالندیانو او انګريزانو په مستقیم او غیر مستقیم ډول اشغال کړې وه، په ۱۹۴۸ کې ئې خپلواکي اخيستې ده.

رسمي ژبې ئې سنهالي، تاميلي او انګليسي دي، اوسني رئیس جمهور ئې میتري پالاسيريسنا دئ او پولي واحد ئې سریلانکايي روپۍ دي.

د دې هیواد نفوس پر څلورو طبقو وېشل سوی دئ: ۷۴،۹٪ سنهالیان چې زیات واک هم ددوی په لاس کې دی، ۱۱،۲٪ سریلانګايي تامليان، ۴،۲٪ هندي تامليان، ۹،۲٪ ئې مسلمانان او ۰،۴٪ ئې نور مذهبونه او ډلې دي.

دسریلانکا هیواد دينونه عبارت دي: ۷۰٪ بودایزم، ۱۲،۶٪ هندويزم، ۹،۷٪ اسلام، ۷،۴٪ عیسوی او پاته ۰،۱ ئې نورمذهبونه تشکلیوي.

ددغه هیواد اقتصاد زیات پر زراعت، سیاحت او خدماتو ولاړ دئ، دچایو، کوپړی، وريجو او ځینو میوو صادرواتو ئې هم پر اقتصاد مستقیم اغېز کړی او همدارنګه سلګونه زره سریلانکایان په مالدیف، مالیزیا، قطر، عربي متحده اماراتو او ځينو نور هیوادونو کې په کار بوخت دي او هر کال په میلیاردونو ډالر خپل هیواد ته را استوي.

دسریلانکا کورنۍ جګړه او سوله:

مونږ دخپلو سمینارونو په لړ کې دوهمه او دریمه ورځ د دې هیواد د دولتي جوړښتونو، بيارغوني، اقتصادي او مدني فعالیتونو ترڅنګ دسولې پر پروسې او په دغه پروسه کې د مذهبي او نورو ډلو د رول په اړه معلومات تر لاسه کړل. په دغه ارايه کونکو کې ئې ځيني لوړ رتبه مقامات وه، چې هره يوه دسریلانکا دجنګ داستانونه په خورا خوند، شفافیت او بېلا بېلو طريقو بيانول.

د سریلانکا دري لسيزي جګړه چې اوس ئې اثار په دېوالونو کې بند پاته وه، ديو بشپړ داستان په ډول ئې اوریدل هرچاته په زړه پوري دي. د دغه هیواد کورنۍ جګړه دازادۍ اخیستلو وروسته دتامليانو ( دتاميلي ژبه ويونکو) سره دتبعيض څخه پيلېږي، ځکه د دغه

هیواد ډېرکیو (سنهالیانو) بې انصافي او د تاملیانو په وړاندي تبعیض، سریلانکا درې لسیزې جګړې ته ننه ایستل. سنهالیانو یوازې خپله ژبه رسمي کړې وه او په دولتي او نورو چارو کې ئې هم تاملیان دېېلابېلو بشري حقوقو څخه بې برخي کړي وه، دغه کړني د دې لامل سوې چي دتاملیانو نر او ښځې لوی او کوچنی د خپل حق غوښتلو شعار لاندي د دېرشو کلونو لپاره تر ۲۰۰۹ کال پوري وسله واله مبارزه وکړي.

دسریلانکا څه کم درې لسیزي جګړه داقتصادي او بشري اړخه یو قیمتي جګړه وه؛ په کومه کې چې هره ورځ جنګونه، وحشتونه، چاودني او بېلا بېل ناورینونه پېښ سول.

د سریلانکا ولسمشر (ماهندا راجافکسا) د دغه ناورین دختمولو لپاره په ۲۰۰۹ کال کې د پارلمان سره په مشوره د جګړې دختمولو لپاره د شاوخوا یو لک مجهز پوځ داماده کولو او دتامیل پړانګانو پر سیمو دبرید کولو تصمیم نیسي. د سریلانکا هیواد سره په دغه مبارزه کې د (سوله ټینګونکو) په نوم دهند هیواد هم سل زره ساتونکي جنګېدل. دسریلانکا هیواد حکومت هغه کسان چې سولي ته علاقمند وه، د هغوی پر مخ ئې دسولي دروازې پرانستلې او د دوی ځیني شرطونه ئې ورسره منل، خو هغه کسان چې سولي ته ئې غاړه نه ایښوول د حکومت د وسله وال غبرګون سره مخکېدل.

دغه جګړه دپیل څخه ډېره په تېزۍ سره مخته تلل، چي دڅو میاشتو په جریان کې شاوخوا نهه زره تنه وژل سول او شاوخوا څوارلس زره نور ټپیان سول، خو بلاخره د دوی دغه جګړه په وروستي ډګر (مولتیوي) کې حکومتي ځواکونو د تامیل پړانګانو په له منځه وړلو سره پای ته ورسول.

د سریلانکا لپاره دغه ۲۶ کلنه جګړه یوه ډېره قیمتي او دردونکي وه، د اقتصادي لحاظه دغه جګړه سریلانکا ته په ۲۰۰ بیلونه ډالره تمامه سوه، بشري زیانونه ئې هم کم نه وه. په دغه جګړه کې شاوخوا یو لک ملکیان ووژل سول، ۲۷ زره دتامیل پړانګانو جنګیالیان، ۲۴ زره دسریلانکا دولتي سرتیري، ۱۲۰۰ تنه دهند سوله ساتونکي ځواکونه ووژل سول، په زرهاوو نور معلول او ټپیان سول، په زرهاوو ښځې کونډېاني سوي، زیات شمیر ملکیان ئې دخپلو سیمو بې ځایه او دهر ډول بشري حقوقو څخه بې برخي سول، خو اوس دګوتو په شمېر کلونو په تېرېدولو سره ډېر ژر د سریلانکا ظاهري بڼه بدله سوې، هر څه پکښې هیله بخښونکي او دیو پرمختللي هیواد په څېر معلومېږي.

جنګ یوه بدمرغي ده؛ خو تر جنګ وروسته بیا رغول، د بې ځایه سوو خلګو ځای پر ځای کول، هغوی ته روحي سکون، دژوند اسانتیاوې، کار، پر دولت باور او نورې بې شمېره مهمې او ضرورې چاري بله هغه سخته ربړه ده، چي له جنګه راوتي ملتونه ورسره په لسیزو مبارزه کوي.

موږ د خپل دغه علمي سفر پر محال په (۷) اووهمه ورځ دمولتیوي په نوم دجګړې وروستي ډګر ته سفر وکړ، چي هره څه پکښې نوي او دابتدایي ژوند نښو مفهوم ئې ورکاوه؛ ځکه اوس پکښې سوله قایمه سوې وه او حکومت ورته دژوند لومړني امکانات برابر کړي ول، خو هلته اوس هم د جنګ نښې وې، نړېدلي کورونه معلومېدل، د سوځېدلو ونو نیمي تنې د

سړکونو پر غاړو وچي ولاړي وې، د خلکو په څېرو کې غربت، بېوسي او نوري ستونزي د حس وړ وې. په یو رنګ تازه نوي پوره او یا نیم جوړ سوي کورونه دخامه سړک دواړو غاړو ته پراته ول، ځیني کسان لا هم اوس اخته ول او دځانونو لپاره ئې کورونه جوړل.

د سریلانکا حکومت د جنګ او سونامي د بې ځایه سوو لپاره د استوګني د کورونو یوه ستره پروژه پیل کړې وه او غوښتل ئې چي (۵۰۰۰۰) زره نوي کورونه جوړ کړي، چې له دې جملې (۵۰۰۰) زره ئې په مولیتوو کي وه. د دغي پروژې د رهبرۍ چاري هغه پوځي جنرال ته سپارل سوي وې، چې مخکي ئې دلته جګړه رهبري کول. هغه د هر کور د جوړولو په کار کي د تامیل پړانګانو دوه مخکیني جنګیالي د کاریګرو په شکل ورسره نیول (البته که موجود ول) تر څو بیرته ټولنیز ژوند ته ورستانه سي.

**مسلمانان په سریلانکا کي:** مسلمانان دسریلانکا په نفوس کي ۹،۲ سلنه تشکلیوي، که څه هم ادم علیه السلام پر دې ځمکه پښه ایښې خو د وخت په تېرېدو پکښې زیات مذهبي تغیرات راغلي. سریلانکا ته اسلام داموي خلافت پر محال ور ورل سوی. مسلمانو هغه وخت د دغه سیمي سره تجارت درلود، چي په همدي جریان کي د محمد بن قاسم رحمه الله لخوا پر سیند د یرغل، فتحې او د اسلام د خپراوي علت هم همدا مسلمان سوداګر وه، چي د سیند د هماغه وخت واکمن ئې مالونه او کورنۍ یرغمل کړې او د خلاصون لپاره ئې حجاج بن یوسف د محمد بن قاسم لښکر سیند ته واستوی، چي د دې سره سم هلته اسلام خپور سو.

مسلمانان اوس په سریلانکا کي ښه او ازاد ژوند لري. د سریلانکا په مرکز کولمبو ښار کي ښایسته مسجدونه وه او د آذان ښایسته ږغ اورېدل کېدی.

دسریلانکا مسلمانانو زیاتي تجارتي او اقتصادي چاري مختته وړلې، د سریلانکا په اوږده جګړه کي د دوی بې طرفي د دې لامل سوې وه، چې دوی ارام ژوند او په ازاد ډول خپل تجارتي او اقتصادي چاري مختته یوسي.

په قانون کې هم دمسلمانانو لپاره ځیني استثنات او توپیرونه وه. مثلاً: پر نورو قومونو پابندي وه، چي اولادونه ئې باید کم وي دوه یا درې، خو پر مسلمانانو باندي په دې برخه کي هیڅ پابندي نه وه. دوهم د نورو قومونو هلک او نجلۍ چي واده کوي عمر ئې باید اتلس کاله وي، خو د مسلمانانو نجونې پر دولس کلنۍ هم ودېدلای سوې.

د داسي استثناتو په خاطر اوس نورو قومونو بېره درلودل، چي د مسلمانانو شمېر زیاتېږي او بیا به لکه مالیزیا، اندونیزیا او سنګاپور مطلق اکثریت وګرځي.

موږ تر دولسو ورځو وروسته دسریلانکا دعلمي سفر څخه بیرته خپل هیواد ته د ډېرو پیغامونو او خاطرو سره راستانه سو. د دوی په منځونو کي میني، خلوص، اخلاص، وطندوستۍ او یو دبل مذهبونو ته له پوره درناوي څخه یو لوی درس واخستی، د دوی حالت ته په کتلو به زما ستر ګو ته خپل دردېدلی هیواد ودرېد، چي هآی کاش! څه وخت به زموږ په وطن کي داسي ورځ راسي چي په ډلو – ډلو سیلانیان به د دې هیواد د جګړې د ختم د پاته شونو او تاریخي اثارو دلیدنو او تفریح لپاره راسي او زموږ دهیواد څخه به مثبت، د میني خلوص، اخلاص، ورورولي او زموږ د مېله پالني داستانونه له ځان سره یوسي.

# دوکتور محمود حبیبي ته د پوهاند حبیبي لیک

۴ حوت ۱۳۳۹ش

یادونه: دا لیک د لالا محمدسعید د مړینې غمرازي ده، چې پوهاند حبیبي په کابل کې د هغه مرحوم زوی دکتور محمود حبیبي ته لېږلی دئ. د دې لیک د لیکلو پر وخت علامه حبیبي په کراچي کې د تبعید او پردېسۍ شپې ورځې تېرولې. لالا محمدسعید د مرحوم پوهاند حبیبي دا کا زوی وو، علامه مرحوم ته ئې د پلار حیثیت درلود، په دې لیک کې ئې د پلار او مهربان انسان په شکل یاد کړی دئ، خو د خپل دغه خواخوږي د غمرازۍ په مراسمو کې له ګډونه محروم وو. دا لیک ما [روهیال] له پارسي څخه پښتو ته ژباړلی دئ. لیک موږ ته د علامه حبیبي سره د زمانې کج رفتاري او خښم راښیي، علامه مرحوم لس کاله له خپلو خلګو او خپل وطنه لیري د پخواني هندوستان په کراچي کې د جلاوطنۍ شپې ورځې سبا کولې.

زما ګران دکتور محمود حبیبي!

همدا اوس مې د کابل راډیو له انګریزي سرویس څخه ستاسې د قدرمن پلار د مړینې ژړوونکې او حسرتناک خبر واورېد، سخت ئې وځورولم. زه، اولادونه او د کوچنیانو مور په سرو سترګو کښېنستو او دغه زړه خوږوونکي خبر مو نور ګرومونه هېر کړل. خدای دې پر ده (لالا محمدسعید حبیبي) ورحمېږي، تاسي او ګرومجنې ملو (مریم) ته د زړه صبر غواړم.

د هغه مرحوم وروستی لیک اووه ورځې مخکې راورسېد، هلته ئې لیکلي ول: "کېدای سي زه او ته سره و نه وینو، ځکه سخت ناروغ یم". د دغو کرښو لوستلو په دې پردېسي او تنهایي کې نور هم خوږ کړم. زه پوهېږم چې بې رحمه زمانه زما سره څومره کینه او بغض لري، ځکه د مور له لیدلو او د دارواښاد [لالا] له دیدنه یې محروم کړم، خدای ته معلومه ده چې نور څه رابانديوینې.

وطن ته د تللو په صورت کې مې له ډېرو آرمانونو څخه یو د مرحومې مور او ارواښاد لالا لیدل ول، لیکن افسوس له دواړو محرومه سوم.

زما ګرانه! په دې اړه زما د زړه له کومې خواخوږي او غمرازي ومنه. دی ستا پلار وو، لیکن پر ما هم تر پلار مهربانه وو او د دغسي خواخوږو او مشفقو مشرانو مړینه زما له پاره نه جبرانېدونکې ضایعه ده.

زما د مېرمنې تسلیت ملو (مریم) ته ورسوه.

د زمانې خښمېدلې او له کینې ډکه چپلاخه سخته او درنه ده، نه پوهېږم چې د دوستانو او وطن لیدل به مې نصیب سي که یا!

په هر صورت، ګرانه! د زمانې قانون همداسې دئ، انسان د تقدیر په منګولو کې د لوبو تر نانځکي اضافه نه دئ، زموږ له پاره یوازینۍ لاره صبر او تحمل دئ.

یو ځل بیا د خپل ارواښاد مشر او مشفق روح ته دعا کوم، فاتحه ورلېږم او اروا یې ښاده غواړم.

پرېشان او غمجن عبدالحی حبیبي[۱]

---

[۱] پورته لیک د پوهنیار مطیع الله روهیال په زیار او زحمت چمتو سوی او د دوی په فېسبوک پاڼه کې خپور سوی. کندهار مجلې اداره ئې د خوندیتوب او ګټورتوب په موخه تاسو درنو لوستونکو ته کټ مټ خپروي.

# ډاکټر نثاراحمد صمد واصفي ته د ځوانیمرگ پټیال لیک

۲۲ سپټمبر ۲۰۰۸

ښاغلی ډاکتر صاحب!

زما (عبدالقدیم پټیال) سلامونه او نېکې هیلې ومنئ.
ډېر خوشحاله یم، چې په ژوند کې د لومړي ځل له پاره لیک درته لیکم، خو له دې خوشحالۍ سره سره یوه بېره هم راسره ملگرې ده، چې خدای مه کړه ستاسو په مخ کې کومه گستاخي و نه کړم، نو زما غلطي تاسو په خپله بزرگواري سره رامعاف کړئ.

ښاغلی ډاکتر صاحب! زه د کندهار یو عادي ځوان یم،چې اوس هم په کندهار کې ژوند کوم، خو له کومه وخته چې په لیک او لوست پوه سوی یم نو له مطالعې سره مي مینه او علاقه پیدا سوې ده، چې دا دئ پر دغي علاقې مي نو اوس څوارلس، پنځلس کاله اوړي.
په دغه برخه کې په ځانگړې توگه له تاریخ او ادب سره زیاته لېوالیتا لرم او هر کله د دغو علومو په لوستنه او شننه ځان مصروفوم، چې په دغسي حالت کې نو طبیعي خبره ده چې زه هم دغه ډگر ته په ډېر اومه شکل سره ور ننوتلی یم. یعني په اکاډیمیکه توگه نه په دغه برخه کي زدکړي لرم او نه هم د دغو څانگو په زدکړه کي موقع راته مساعده سوې ده، نو ځکه په دغه برخه کي زما ټولي هڅي اماتور شکل لري، خو بیا هم کله نا کله خپله هڅه کوم او دا چي دغه زما هڅي به څونه ځای ونیسي، یا یې نیولی دئ، هغه د لوستونکو په قضاوت پوري اړه لري. زه خپله په خپلو لیکنو او ژباړو خوښ او ډاډه نه یم، خو په اروایي لحاظ تل په یوه شي خوشحاله یم او د دې خوشحالۍ تر څنگ فخر هم په کوم، چي هغه د تاریخ په ساحه کي د لوی استاد علامه حبیبي او ستاسو محترم آثار او ژباړي دي، چي دا په واقعیت کي د افغانستان له پاره یوه مهمه او پر ځای اضافه گڼل کېږي. دلته په کندهار کي ما تل له دوستانو او ملگرو او صاحب نظرو اشخاصو سره پر دې بحث کړی دئ، چي ډاکترصاحب محترم په اوسنیو مورخینو او سیاسي څېړونکو کي خاص ځای او مقام لري او په ځانگړې توگه بیا ستاسو او ستاسو د درنې تاریخي کورنۍ ټول اشخاص خو د افغانستان د سیاسي ویښتابه او علمي روڼتیا په میدان کي د سر د

کتار شخصیتونه دي، چي د هغوی ملي مبارزې او علمي کارنامې په هیڅ صورت د هېرې نه دي.

ښاغلی ډاکتر صاحب! ډېره بخښنه غواړم چي خبره را څخه اوږده سوه، خو بس دغه د خبرو اوږدوالی یوازي او یوازي ستاسو سره زما علاقه و بولئ. د مقصد د خبري په ډول دا ویلای سم، چي دلته په کندهار کي یو ځوان لیکوال او ژباړن د عبدالنافع ثنا په نامه اوسېږي، چي په ډېر کم عمر کي یې ډېر تاریخي آثار له انګرېزي ژبي څخه را ژباړلي دي، چي په دغه برخه کي یې یو اثر د (میوند فاتح) په نوم هم ژباړلی، چي په کندهار مجله کي په پرله پسې ډول خپور سوی او اوس غواړي چي په مستقل ډول یې نشر کړي، نو د ښاغلی ثنا او ځینو نورو روشنفکرو ځوانانو دا خوښه ده، چي تاسو (ډاکتر صمد صاحب) که پر دغه اثر یوه سریزه او یا هم کوم یادښت ولیکی، نو دا به مو هم د کتاب ژباړي ارزښت څو چنده کړی وي او هم به مو د کندهار له ځوانو لیکوالو سره یو ډول روابط قایم کړي وي. البته دا د یادوني وړ ده، چي دا یوازي او یوازي د کتاب د ژباړن او ځینو لیکوالو یو ډول هیله ده، نه دا چي دا کار باید وسي، ستاسو ارزښتمن وخت موږ ته ډېر ارزښت لري او د زیاتو مصروفیتونو په صورت کي دا خبره حتمي نه ده.

په ډېره مینه او ادب ستاسو ارادتمند او مخلص
عبدالقدیم پتیال[۷]
د ویښ ملګري فرهنګي ټولني مشر

[۷] پورته لیک د پوهنیار مطیع الله روهیال په زیار او زحمت چمتو سوی او د دوی په فېسبوک پاڼه کي خپور سوی. کندهار مجلې اداره ئې د خوندیتوب او ګټورتوب په موخه تاسو درنو لوستونکو ته کتې مټې خپروي.

**مرحوم عبدالحمید ارغنداوی**

# مشروع ګټه

کله چي لمر څرک ووهي، ورو را پورته سي، داسمان او ځمکي مخ په خپلو زرینو وړانګو روښانه کړي. پدې وخت کي انسان دخپل بقاء او پاینښت لپاره په کار او عمل ګوتي پوري کړي، تر څو د ځان او خپلي کورنۍ دغړو آبرومندانه ژوند تامین کړي، هر څوک دژوندانه په ډګر کي دښه ژوند لېوال دئ، هڅه کوي چي د نورو په شان دیوهوسا او آرام ژوند خاوند وي، خودا آرمان دتلاښ په څرنګوالي او د خدای جل جلاله په پېرزوینه پوري مستقمي اړیکي لري.

هیڅوک نه سي توانېدلای، چي خپل نصیب او قسمت ته تغیر او بدلون ورکړي، خو دا باید داسي ارزیابي نه سي چي ګواکي دژوندانه ټول کارونه تقدیر ته حواله کړي د کار او زیار څخه لاس پر سر سي؛ داځکه چي په زیار او زحمت کي د انسان سعادت او برکت نغښتی دئ، هیڅوک له دغه اصل نه انکار نه سي کولای، انسان هرو مرو مکلف دی، چي دخپل استعداد څخه په استفاده سره جایزه او مشروع ګټه ترلاسه کړي او د ناروا ګټي څخه ځان وژغوري.

رحمت الله اسحاق

# ښادمن علمي خزانه او لوبيستان

د کوچنيانو د خيالي نړۍ حقيقي تصوير، د ځلميانو د کسرت بهترين ادرس، د ځوانانو د تفريح او روحي سکون د خوښې ځای او د نوي نسل د ذهنيت سازۍ او شخصيت جوړوني معنوي کور (ښادمن علمي خزانه او لوبيستان).

په دې څهاردېوالي کې په لوړ ذوق، عالي سليقه او خورا زيار و زحمت سره د خپلو خلکو او ځوان کهول له پاره په ډېرو عمده برخو کې د خدماتو د وړاندې کولو او سهولتونو د برابرولو په نيامت سرمايه ګزاري سوې ده، چې لومړۍ ئې د کسرت او ورزش اړخ دئ، دوهم ئې تعليمي او تحصلي خوا ده او دريم ئې د تفريح، سکون او ارام برخې دي.

د دې عصري او ښکلي ودانۍ مالک با احساسه ځوان او پر خپلو خلکو مين ځلمی ښاغلی حکمت الله ښادمن دئ. دا په ملي روحيه سمبال سړی؛ د خپل سپېڅلي احساس، سخاوتمندانه خصلت او وطني ميني له بابته په خپل اولس کې د قدر وړ ځای لري. ځکه په خورا ډېرو مواردو کې دې ځوان د بېچاره او بې وسو خلکو لاسنيوی کړی او په مختلفو وختونو کې ئې د ملي پياوړتيا له پاره قابل د قدر او ستايني ګامونه اوچت کړي دي.

د (ښادمن علمي خزانه او لوبيستان) مزينه ودانۍ او د خپلو خلکو پر مخ د دغسي يو معياري ور پرانيستل د دې ځلمي د وطن دوستۍ يوه بله تازه او ښکاره بولګه بللای سو.

راځئ؛ د دې وره؛ په دننه کې پر سته برخو او اړخونو وګرځو.

لومړی – لوبيستان (ورزشي کلی):



د مختلفو لوبو ځای دئ؛ هغه ځای چې په لومړي ځل پکښې داسي لوبې ترسره کېږي، چې د کندهار، جنوبي زون او هيواد په کچه ئې ډېری ډولونه يا نسته يا ئې هم څوک نه پېژني.

په دې ورزشي کلي کې د فوټبال د فوټسال په برخه کې دوه داسي ميدانونه په خورا لوړ کيفيت او ښکلي ډول سره جوړ سوي دي چې د ګرځندويانو او

لیدونکو له قوله په درست افغانستان کې ئې تر دا مهال پورې بولګه نه ده تر سترګو سوې. له دې دوو لوبغالو څخه یو ئې سرپټی میدان دئ، چې پر یوه وخت د دوه نیم زرو نندارچیانو ضرفیت لري. دا ښکلی لوبغالی د هیواد د ځینو تاریخي اماکینو په سترو سترو تابلوګانو سره لا نور خوندور سوی دئ. په دې میدان کې له لمر



څرک سره لوبې پیلېږي، بیا تر نیمو شپو په پرلپسې توګه د ځوانانو تګ راتګ او د چکچکو شور پر سر اخیستی وي.

دوهم هغه ئې سرلوڅی او زرغون میدان دئ، دا لوبغالی د یو مظبوط اوسپنیز او جالیدار چوکاټ په ترو سره په ښایسته بڼه جوړ دئ، په دې لوبغالي کې مصنوعي چمن (چې دا مهال د فوټبال په نړۍ کې خورا عام سوی) غوړېدلی دئ. سرلوڅی (زرغون میدان) د نندارچیانو له پاره هم ځانګړی ځای لري، په دې میدان کې هغه مهال چې د اسمان پر مخ غونډۍ غونډۍ وریځې تاوبالا کېږي، لوبه پکښې ځانګړی خوند او ننداره لري.

د دې ورزشي کلي په نورو لویو برخو کې ګېم زونونه، د فوټبال اکاډیمي او د کوچنیانو د لوبو او ساتېرې ځانګړې ځایونه هم سته. دلته د اویا اتیا ډول ډول لوبو او ګېمونو سامانونه راوړل سوي او د ځوانانو په وړاندې ځیني پراینستل سوي او ځیني د پرانیستلو په حال کې دي.

دوهم – ښادمن علمي خزانه:

دا دروازه د نوي او ځوان نسل د تعلیمي، تحصلي او علمي اړخونو د تقویې او پیاوړتیا په مراد پرانیستل سوې ده.

دلته به د ځلمو؛ د ذهني غنا او پراختیا له پاره په ټول توان کوښښ کېږي، تر څو په نتیجه کې دا تېر د سیالانو سره د سیالۍ وړ سي.

د ښادمن علمي خزانې په چوکاټ کې په لوړ معیار او ښه کیفیت له وړکتون څخه تر پوهنتون پورې د مختلفو تعلیمي او تحصلي زدکړو فرصتونه په پام کې نیول سوي دي. د دې ارمان او هدف له پاره درې پوړیزه داسې ودانۍ په اختیار کې ورکړل سوې ده، چې له هره اړخه پوره او معیاري ده. دلته تر کمیت پر کیفیت ډېر ټینګار دئ.

په دې علمي خزانه کې د (اسراء) په نوم یو هم کتابتون او څېړنیز مرکز پرانیستی دئ، چې موخه او هدف ئې په ټولنه کې د مطالعې د فرهنګ پراختیا او پیاوړتیا ده. په دې کتابتون کې د ځوانانو او مطالعې د علاقمندانو لـه پاره د بېلابېلـو کټګوریـو ډول ډول کتابتونـه را یـو ځـای سـوي دي. (اسـراء کتـابتون او څېړنیـز مرکـز) د مراجعینـو او مسـتفدینو لـه پـاره د مطـالعې ارام چاپېریـال، انټرنیـټ او د کمپیوټرونـو اسـانتیاوي هـم برابـري کـړي دي. دا کتـابتون؛ د مطالعې د ودې له پاره ځانګړې پالیسي او منظم کاري پلان لري، تر څو د وخت په تېرېدو سره ئې دې اړخ تـه د ځوانانو پام لا ډېر کړی وي.

د کمپیـوټر او ټکنـالوجۍ پـه مختلفـو برخـو کـې معیـاري زدکـړې، د بېلابېلو او مهمـو ژبـو تـدریس، د دیني او عصري سبقانو ور زدکول، وړکتون، ښوونځي، روغتیایي انستتیوت او بالاخره د لیسانس او ماسټرۍ تر کچې تعلیمي او تحصلي خدمات وړاندي کول د دې علمي خزانې هغه بنستیزې موخې دي.

دریېم - د ارام، سکون او تفریح خواوې:



لکه څنګه چې مو مخکې وویل په دې چهارد ېوالي کـې د پورتـه دوو اساسـي برخـو تـر څنـګ د اسـتراحت، ارام، سـکون او تفـریح لـه پـاره هـم اسـانتیاوې موجـود دي.

۱ - د ناجوباغ؛ په نامه پارک چې په ښکلو فوارو، ډول ډول مزینـو ګلانـو، ناجوګـانو او څراغـانو سـره ښایسته دئ، په لیدو او پکښې وخت تېرولو د سړي فکر ارام او د خوښۍ احساس خپلوي.

- چایخانه؛ هغه ډېرین او رنګین دالان دئ، چې سینګار او ښایست ئې له لیدونکي خستګي او ستړیا وړي. دلتـه د چایو مختلف ډولونـه لکه ترکۍ چایي، عسـل والا چـایي، لېمبـویي چـایي او سـاده چـایي موجودي وي، د دې سره په څنګ کې د تازه مېوو ډول ډول جوسونه هم محیا کېږي.

- ګـل بـام؛ د دې ودانـۍ اخیـري پـوړ دئ. پـه کلاسیکه بڼه جوړ دا ځای د خاموش چاپېریال لرونکی دئ. دلته د ډول ډول ګلانو او طبیعي بوټو ننداره سړي تـه ارام او سـکون ور بخښـي. پـه دې ځـای کـې د مراجعینو له پاره د خوړو او کافي مختلف خدمات په پام کې نیول سوي دي.

ښادمن علمـي خزانـه او لوبیسـتان؛ پـه هغـه ځـای بـدل سـوی چـې د سـیمي خلـک ورتـه لـه نورو ځـایونو څخه راغلي مېلمانه د لیدو، خیال او فخر له پاره راولي. څکه تر دې دمه په دې ودانـۍ کـې د موجـوده خـدماتو ډولونه او ښایست د هیواد په کوم بل ولایت کې نـه دئ تر سترګو سوی.

د داسي یوې ورځې په ارمان؛ چې په هیواد کې مـو تلپاته امن، خوښي او ارامي حاکمه وي، تر څو له برکته ئې زمـوږ د ملـک هـره برخـه او د هـري سـیمي خلـک د دغسي عصري او ښایستو سهولتونو لرونکي وي.

# د اطلاعات او فرهنگ رياست د فعاليتونو دوې مياشتنى راپور

**(حمل - ثور)**

- اطلاعات او فرهنگ رياست د انار ګل له غوړېدو سره سم انار ګل دوديزه مشاعره جوړه کړه، چې د محترم وزير پوهاند باوري صاحب او کندهار والي ښاغلي زلمي ويسا تر څنګ شاوخوا ۲۰۰۰ کسانو ګډون پکښې کړی وو.
- د اطلاعات او فرهنګ وزير پوهاند محمد رسول باوري او ورسره پلاوي کندهار ته دوې ورځنى سفر وکړ، چې د ۷ ميليونه افغانيو په ارزښت ئې د ميرويس نيکه مقبرې د ترميم پروژه افتتاح کړه، چې يو کال به دوام وکړي. د دې تر څنګ ئې د کندهار ميوزيم وروسته له هغه افتتاح کړ، چې په لومړي ځل ۴۰ ورځې مسلکي کسانو د اثارو پېژندنه وکړه. محترم وزير باوري صاحب له ولايت مقام، آزادۍ مطبعې، عامه کتابتون، نګارستان، خرقې شريفي، احمد شاه بابا زيارت، نارنج مانۍ، زړې جامع، سليمان برج او مينا برج څخه په دې موخه ليدنه وکړه چې د ترميم او استملاک لپاره ئې پروژې ډيزاين سي. ښاغلي باوري صاحب د بېلا بيلو مېلمستياوو، يوې بلې آزادي مشاعرې او خاصو مواقعو پر مهال د کندهار له يو شمېر مخورو، ممثلينو، فرهنګيانو او د سوېل لوېديځي حوزې له اطلاعات او فرهنګ رئيسانو سره وليدل او د رياستونو د بهبود لپاره ئې مشورې ورکړې.
- د طلوع افغان ورځپاڼي د اعلاناتو عوايد له ۱۳۹۶/۱۱/۷ څخه تر ۱۳۹۷/۱/۳۰ نېټې پورې «۱۰۹۵۰۰» افغانۍ سولې او د مشترکينو عوايد له ۱۳۹۶/۱۲/۲۰ څخه تر ۱۳۹۷/۱/۲۹ نېټې پورې «۲۰۲۵۰» افغانۍ سولې، چې ټولټال «۱۲۹۷۵۰» افغانۍ د مستوفيت له لارې افغانستان بانک ته تحويل او د دولت عمومي اکاونټ ته انتقال سول.
- د افغانستان د اجرائيه رياست مرستيال ويانډ جاويد فيصل، د اطلاعات او فرهنګ رئيس فضل البارې بريالي او ورسره پلاوي له ملي راډيو-تلوېزيون، هيواد راډيو-تلوېزيون، ژوندون تلوېزيون، زما راډيو، کليد راډيو، زېور راډيو او تبسم راډيو څخه ليدنه، وکړه او د دغو راډيوګانو د کيفيت ښه کېدو لپاره ئې لازمي مشورې او نظريات ورسره شريک کړل.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د خبريالانو د جرګګۍ غونډه جوړه کړه چې د سيمه ييزو رسنيو او مطبوعاتي بنسټونو مسئولينو ګډون پکښې کړی وو. په غونډه کې د خپرونو پر کيفيت، د اطلاعات او فرهنګ رياست له خوا د اعلاناتو لپاره د نرخنامې پر جوړولو، د کار کوونکو پر مسلکيتوب، د رسنيو پر مسئوليت او د ملکي ادارو له خوا له رسنيو سره د معلوماتو پر شريکولو خبري وسوې او لازم تصميمونه ونيول سول.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د کتاب د نړۍ والي ورځې په مناسبت له صفيه عمه جان لېسې سره د تقريباً ۸۰۰ تدريسي کتابونو مرسته وکړه.

- د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست د دې ولایت شاعران د زابل په بادام ګل دودیزه مشاعره کې د ګډون په موخه سره راغوند کړل، د اطلاعات او فرهنګ رئیس فضل الباري بریالي هم ورسره ملګری سو او په بادام ګل مشاعره کې ئې ګډون وکړ او داراز یې د هلمند سیند مشاعرې لپاره د کندهار شاعران خبر کړل.
- د اطلاعات او فرهنګ رئیس فضل الباري بریالي، د کندهار پوهنتون استاد صدیق الله اعظمي، د کندهار پوهنتون محصل اسدالله ارماني او د سمیع الله په نوم یو ځوان له میوزیم سره د ۶ تاریخي اثارو مرسته وکړه.
- کندهار پوهنتون له اطلاعات او فرهنګ ریاست څخه غوښتنه وکړه، چې د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د وروستي کال محصلین دي پر یو شمېر تاریخي ابدو وګرځول سي، څو د کندهار له تاریخي ځایونو سره بلدتیا پیدا کړي، اطلاعات او فرهنګ ریاست د کندهار پوهنتون له غوښتني سره سم پلان جوړ کړ او درې پرله پسې ورځې ئې ۲۶ تنه محصلین پر تاریخي ابدو وګرځول او د ابدو په باب معلومات ورکول سول.
- اطلاعات او فرهنګ او حج و اوقاف ریاستو نو په ګډه په شهید عبدالمجید بابي تالار کي هغو کمپیوټر والاوو ته چې د ښار پر پیادرووونو ئې کمپیوټرونه ایښي وي او ویډیویي فلمونه او کلیپونه خرڅوي، دوې پرله پسې غونډي جوړې کړې او هغوی ته ئې سپارښتني وکړې چې د غیراخلاقي او ترهګریزو فلمونو له خرڅولو کلکه ډډه وکړي.
- په غازي ستېډیم کي د کندهاري ځوانانو د همږغی میاشتنۍ غونډه جوړه سوې وه، چې څه کم ۱۰۰ ځوانانو ګډون پکښي کړی وو. په غونډه کي د اطلاعات او فرهنګ رئیس ته بلنه ورکول سوې وه، چې ځوانانو ته د خپلو فعالیتونو په باب معلومات ورکړي او د ځینو فرهنګي او علمي پروګرامونو د جوړولو په برخه کي نظریات ورسره شریک کړي. په غونډه کي د اطلاعات او فرهنګ رئیس برخه واخیسته او ځوانانو ته ئې د خپلو کارونو په باب معلومات ورکړل او د هغوی غوښتني ئې واورېدې چې تر ډېره حده اوس هغه غوښتني عملي سوي هم دي.
- په اطلاعات او فرهنګ ریاست کي د کندهار د خصوصي ښوونځیو اتحادیه جوړه سوه او د غونډې په جوړولو کي ریاست بشپړه همکاري ورسره وکړه.
- کندهار پوهنتون په لومړي ځل د عملي ژورنالیزم په باب یو ورکشاپ جوړ سوی وو، چي د اطلاعات او فرهنګ ریاست په ژوري پلاوي کي ورسره همکار وو.
- د «ویښتیا» په لړ کي د کندهار پوهنتون استاد ښاغلي نور احمد خوشال «په علمي مقالو کي د ماخذ لیکني اصول»، د کندهار پوهنتون استاد ښاغلي نثار احمد اریا «د لنډي کیسي تیوري»، د کندهار پوهنتون محصل ښاغلي فېروز ملکزي «په مورنۍ ژبه د زدکړې ارزښت او په مروجو افغاني نصابونو کي د نصاب الصبیان ځای او اهمیت» او د کندهار پوهنتون محصل ښاغلي سېلاب «د ساینس فیکشن» په اړه لکچرونه وړاندي کړل.
- په اطلاعات او فرهنګ ریاست کي د لوی کندهار ادبي بهیر اوونیزي مشاعرې په دوامداره توګه جوړې سوي او دوام لري.
- د اطلاعات او فرهنګ رئیس وخت پر وخت د بېلابېلو موضوعاتو په اړه له رغیزو او تصویري رسنیو سره ځانګړي مرکې کړي دي.
- د اطلاعات او فرهنګ رئیس د ولایت مقام په نوبتي اداري او نورو غونډو کي ګډون کړی دئ.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د کتاب د نړۍ والي ورځي په مناسبت د کتاب لوستني سیالي جوړه کړه. د لوی استاد علامه عبدالحي حبیبي «نوموړکي مؤرخین» کتاب ئې انتخاب کړ او د طلوع افغان ورځپاڼي تر څنګ ئې په ټولنیزو رسنیو کي خبرتیا نشر کړه، چي مینه وال نوملیکنه وکړي او په ټاکلې ورځ په سیالي کي برخه واخلي. تر ۱۰۰ زیاتو ځوانانو نوملیکنه وکړه او په ټاکلې ورځ ګڼ شمېر ځوانانو په سیالي کي برخه

واخیسته. د یوې ۵ کسیزې کمېټې له خوا پوښتنې جوړې سوې او تر خوابولو وروسته سمدستي نمرې ورکول سوې او د یوې غونډې په ترڅ کې لومړیو ۳ ګټونکو ته یو–یو موبایل او کپونه ورکول سول او پاته پرله پسې ګټونکو ته یوه–یوه جوړه کالي ورکول سول.

- اطلاعات او فرهنګ ریاست د کندهار له لوی زندان سره د تقریباً ۲۰۰ کتابونو مرسته وکړه او د زندان له مسئولینو سره ئې د محبس د کتابتون، کمپیوټر لیب، انګلیسي کورس، علمي، فرهنګي او هنري چارو د غښتلتیا په موخه نظریات تبادله کړل. اطلاعات او فرهنګ ریاست د نقاشۍ او خطاطۍ د یوه استاد د توظیف، د نورو کتابونو د ورکړې، په زندان کې د ادبي بهیر له جوړېدو سره د وسایلو او د طلوع افغان ورځپاڼې د توزیع ژمنه وکړه.
- د طلوع افغان ورځپاڼې د ثور میاشتې د اعلاناتو عواید «۲۸۸۰۰» افغانۍ او د مشترکینو عواید «۲۷۰۰۰» افغانۍ سولې، چې ټولټالي «۵۵۸۰۰» افغانۍ د مستوفیت له لارې افغانستان بانک ته تحویل او د دولت عمومي اکاونټ ته انتقال سول.
- ښاروالي د اطلاعات او فرهنګ او معارف ریاستونو په همکارۍ په ښوونځیو کې ښاروالۍ جوړې کړې دي.
- د ۸ ښوونځیو د ښاروالیو کارکوونکو ته علمي سیر جوړ سوی، وو چې د ښاروال، اطلاعات او فرهنګ او معارف رئیسانو له خوا د ښاري فرهنګ په باب معلومات ورکول سول. د اطلاعات او فرهنګ ریاست له خوا د علمي سیر ۶۴ ګډونوالو ته د کتابونو پېک تحفې ورکول سوې.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست د میر هزار جامع له ترمیماتي پروژې څخه څو ځلي لیدنه وکړه، د غیرفني کار په اړه ئې وزارت مقام ته رسمي خبر ورکړ او بالاخره، چې د ښارسازۍ وزارت څخه ۵ کسیز پلاوی راغی، نو په ښارسازۍ ریاست کې ئې د یوې ګډې ناستې په ترڅ کې د ټولو هغو غیرفني کارونو په باب چې ترسره سوي ول، بحث وکړ او د جبران لپاره ئې لازم تدابیر ونیول.
- اطلاعات او فرهنګ ریاست داختر په مناسبت د ملي راډیو–تلوېزیون په همکارۍ یوه دوه ساعته هنري خپرونه ثبت کړه، چې شاعرانو، رسامانو، خطاطانو او ممثلینو ګډون پکښې کړی وو، سندرغاړو سندرې وویلې.
- په اطلاعات او فرهنګ ریاست کې له انساني قاچاق سره د مبارزې په موخه د عامه پوهاوي ۳ ورځنی ورکشاپ جوړ سوو، چې سلګونه کسانو ګډون پکښې کړی وو.
- په اطلاعات او فرهنګ ریاست کې د فوډ زون پروګرام د ختمېدو یوه پراخه غونډه جوړه سوې وه، چې د ولایت د مرستیال، یو شمېر رئیسانو او ولسوالانو تر څنګ ګڼ شمېر کروندګرو ګډون پکښې کړی وو.
- د شیخ زاهد روز نتون سلګونه زدکوونکو د اطلاعات او فرهنګ ریاست له عامه کتابتون، میوزیم او نګارستان څخه لیدنه وکړه.
- د پروموټ پروګرام له خوا اطلاعات او فرهنګ ریاست ته ۶ مېرمنې د کار زدکړې لپاره معرفي سوې چې اوس عملاً پخپلو څانګو کې کار کوي او د کار کولو وسایل ورته اماده سوي.
- د عامې روغتیا وزارت له خوا د اطلاعات او فرهنګ ریاست په همکارۍ په صحي برخه کې د جنډر او بشري حقوقو د پراختیا په موخه مناظره جوړه سوه.

# د کندهار پوهنتون محصلینو له تاریخي ځایونو لیدنه وکړه

د کندهار پوهنتون ځینو محصلینو او استادانو د اطلاعات او کلتور ریاست د ګرځندوی د امیر ښاغلي عتیق الله خان په ملتیا د کندهار ښار او ولسوالیو د تاریخي ځایونو څخه له نږدې د علمي سیر په موخه لیدنه وکړه.



دیاد پروګرام په لومړۍ ورځ ئې د حاجي میرویس خان نیکه د مقبرې څخه لیدنه پیل سوه او د چهل زینو تاریخي غره پورې وغزیده، چې د هر تاریخي ځای په اړه د کندهار پوهنتون محصلینو او استادانو ته د ګرځندوی د آمر لخوا مفصل معلومات ورکړل سول او د محصلینو پوښتني ئې جواب کړې.



په دوهمه ورځ دکندهار پوهنتون د بېلا بېلو پوهنځیو محصلینو د ستر تولواک غازي احمد شاه بابا، خرقې شریفې او په شیرسرخ زیارت کې د صابرشاه ملنګ له قبر څخه هم له نږدې لیدنه وکړه.



دریېمه ورځ د نوموړي پوهنځي محصلینو د کندهار په پنجوایي ولسوالی کې له شمشېر غار او د تاریخي کلا (نارنج مانۍ) بېلا بېلې برخې هم د کندهار پوهنتون محصلینو ته وروښوول سوې.

د ټولو لیدل سویو ځایونو په اړه د ګرځندوی امریت لخوا محصلینو ته بشپړ معلومات او دهغوی د پوښتنو قناعت لرونکي ځوابونه ورکړل.

دالومړی وار نه دئ، تردې مخکې هم د کندهار پوهنتون د ځینو پوهنځیو محصلان د تاریخي او مقدسو امکانو لیدلو ته د ګرځندوی امریت په مرسته بېول سوي، چې د استادانو په قول دغه ډول ګرځېدل د محصلینو پر عملي زده کړو خورا ښه اغېز کوي.



